

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** تفسیر شریف

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي زده کړو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** یوولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، منته کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# سرليکونه

لومړی لوست

# په کايناتو کې د الله ﷻ د وجود او وحدانيت دلايل

قال الله تعالى: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [البقرة: ١٦٤]

**د ځينو کلمو معناوې**

خَلق: پرته له مخکينۍ نمونې نه د يو شي پيدا کول.

السَّمَاوَاتِ: د سماء جمع ده، اسمانونه اوهرهغه څه چې له ځمکې نه لوړ وي.

اللَّيْلِ: شپه، هغه تياره چې وروسته له روښنايي منځته راځي.

النَّهَارِ: ورځ، خوره روښنايي.

الْفُلْكِ: کښتۍ، لويې کښتۍ.

وَبَثَّ: او خواره يې کړل.

دَابَّةٍ: دځمکې پرمخ هر خوځېدونکی شی.

تَصْرِيفِ الرِّيَاحِ: د باد لګېدنه مختلفو اړخونو ته.

السَّحَابِ: وريځ، په فضا کې حرکت کوونکې وريځ.

الْمُسَخَّرِ: په خدمت کې لګېدلی، تابع شوی.

**ژباړه**

بېشکه د اسمانونو او ځمکې په پيدايښت کې، د شپې او ورځې په تګ راتګ کې، په هغې کښتۍ کې چې د خلکو د ګټې لپاره په دريابونو کې ګرځي او په اوبو (باران) کې چې الله ﷻ له اسمانه را نازلې کړې دي او بيا يې ځمکه وروسته دهغې له مرګ نه په اوبو راژوندۍ ( خړوبه) کړه او په هغې (ځمکه) کې يې هرډول ژوندي خوځېدونکي خواره کړل او (هر لوري ته) د بادونو په چلېدو کې او په وريځو کې چې د ځمکې او اسمان ترمنځ ابل کړای شوي دي، يقيناً په دې( ټولو) کې د عاقلانو لپاره( دالله تعالی پر وجود او وحدانيت) څرګند دلايل شته.

**تفسير**

پورتني مبارك آيت په كايناتو او د نړۍ په موجوداتو كې اته څرګند او روښانه دلايل بيان كړي دي، چې د الله ﷻ په وجود او يووالي دلالت كوي.

**۱. د اسمانونو پيدايښت**

دغه مبارك آيت د اسمانونو پيدايښت د الله ﷻ د قدرت له نښو نښانو څخه ګڼي چې هوښياران او د عقل خاوندان ددې نښو په ليدو بايد د الله ﷻ په وجود او يووالي ايمان راوړي.

په آيت كې د (السماوات) لفظ جمع ذكرشوى دى، ځكه اسمانونه ګڼې او بېلابېلې طبقې لري، لكه: څرنګه چې الله تعالى په بل ځاى كې داسې مهرباني كوي﴿الله الذي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ﴾ [الطلاق:۱۲] **ژباړه:** الله ﷻ هغه ذات دى چې اووه اسمانونه يې پيدا كړي دي.

دا چې د اسمانونو پيدايښت د الله ﷻ په وجود، يو والي او قدرت دلالت كوي يوه نښه يې دا ده چې الله ﷻ اسمانونه سره له دومره پراخوالي او لويوالي پرته له ستنو درولي دي او هغه يې په ستورو، لمر او سپوږمۍ روښانه كړي، ترڅو له يوې خوا اسمان ته ښايست و ښښي او له بلې خوا د شيطانانو ويشتونكي وي چې دا ټول ښايست او ټينګښت د واحد او قادر الله ﷻ په برلاسيتوب او لوى والي څرګند نښه دي.

**۲. د ځمكې پيدايښت**

د الله ﷻ د قدرت يوه بله روښانه نښه دا ده چې ځمكه يې پيدا كړې او هغه يې هواره كړې ده، ترڅو انسان پرې آرام او هوسا ژوند وكړي، هرلور ته يې تګ راتګ او حركت وكړي، په هغې كې له پرتو زېرمو او پانګو څخه ګټه واخلي اود ځمكې پر مخ آبادي او پرمختګ وكړي.

ځمكه او اسمان د انسان لپاره د الله تعالى له لويو نعمتونو څخه ګڼل كيږي، لكه: چې الله تعالى دا لوى نعمت په انسانانو پيرزو كړى او دوى ته امركوي: ﴿يَاأَيُّهَا الناس اعبدوا رَبَّكُمُ الذي خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ۝ اَلَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الأرض فِرَاشاً والسماء بِنَآءً وَأَنزَلَ مِنَ السمآء مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثمرات رِزْقاً لَّكُمْ... ﴾ [البقرة: ۲۱-۲۲]

**ژباړه:** اى خلكو د خپل رب بندګي غوره كړئ، چې ستاسو او له تاسو نه د مخكې تېرو شوو خلكو پيداكوونكى دىِ، ښايي چې تاسې پرهيزګاران شئ

الله جل جلاله هغه ذات دی چې ستاسې لپاره يې ځمکه هواره کړه، اسمان يې چت جوړکړ او له آسمانه يې اوبه را واورولې او په هغو سره يې ستاسې د روزۍ لپاره هر ډول حاصلات را وايستل.

**فعاليت**
زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه د انسان لپاره دځمکې او اسمان د ګټو په هکله خپل نظرونه څرګند کړي.

**۳. د شپې او ورځې بدلون**

په مبارک آيت کې د الله جل جلاله د قدرت دريم دليل د شپې او ورځې منظم حرکت دی چې پر له پسې ګرځي او يو د بل ځای نيسي. د شپې او ورځې حرکت، د اوږدوالي او لنډوالي، توروالي اوسپينوالي، تيارې او رڼا د اختلاف سره، سره د انسان لپاره ډېرې ګټې رامنځته کوي. الله تعالی شپه د انسان د سکون او راحت لپاره، او ورځ يې د کسب اوکار او روزي حاصلولو لپاره پيداکړې ده. که چېرې شپه نه وای ، نو ډېرمخلوقات به له خوب او راحت څخه بې برخې وو، همدارنګه شپه د ستر او پردې لپاره يو ښه او مناسب وخت دی چې انسان ورڅخه په مختلفو حالاتوکې ګټه اخلي، لکه: څرنګه چې انسان له ورځې او د هغې له رڼا څخه د ډېرو کارونو په تر سره کولو کې ګټه اخلي، همدارنګه د شپې او ورځې د بدلون او توپير په نتيجه کې وختونه، ورځې، مياشتې اوفصلونو ټاکل کيږي چې دا ټول د انسان لپاره د الله جل جلاله له لويونعمتونو اود قدرت له نښانو څخه دي.

**٤. په سمندر کې رواني کښتۍ**

په مبارک آيت کې د الله جل جلاله د قدرت څلورمه نښه د لويو کښتيو حرکت دی چې له سوونو او زرونو ټنو وزن سره د سمندرونو د څپو په سر حرکت کوي او انسانان ور څخه ګټې اخلي. ځينو مفسرينو دا ويلي دي چې: په دې مبارک آيت کې الله جل جلاله په سمندرونو کې د کښتيو د حرکت يادونه د شپې او ورځې له توپير نه وروسته کړې ده چې دا په يوې ځانګړې باريکۍ دلالت کوي اوهغه دا چې مسافرپه درياbونو او سمندرونو کې د شپې او ورځې خارنې ته ډېر اړ وي، ترڅو وختونه وپيژني اوخپل لوري وټاکي. له همدې کبله کښتۍ چلوونکي د نجوم علم او د شپې او ورځې پېژندلو ته ډېره اړتيالري.

همدغې موضوع ته په اشارې سره الله تعالی په بل آيت کې فرمايي: ﴿وَهُوَ الذي جَعَلَ لَكُمُ النجوم لِتَهْتَدُواْ بِهَا فِي ظُلُمَاتِ البَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ [الأنعام: ۹۷] **ژباړه:** او الله جل جلاله هغه ذات دی چې ستاسې لپاره يې ستوري د وچې او سمندر په تيارو کې د لارې پېژندلو وسيله وګرځوله.

ددې آیتونو د نازلېدو په وخت کې ډېر لږ خلک د انسانانو په ژوند کې د کښتۍ په ارزښت او رول خبر وو، خو د وخت په تېریدو سره انسانان د بشریت په ژوند کې د کښتۍ په ارزښت وپوهېدل چې دا کار د قرآن‌کریم یو اعجاز او د الله تعالی د قدرت او وحدانیت ښکاره اوڅرګند دلیل دی.

**د لوست ګټې اولارښوونې**

د دې مبارک آیت ځینې ګټې په لاندې ډول دي.

❖ په کایناتو کې د هستۍ نښې نښانې د الله تعالی د وحدانیت او وجود د اثبات لپاره روښانه دلایل دي.

❖ الله تعالی د نړۍ مخلوقات د انسان د خدمت او ګټې لپاره پیداکړي دي.

❖ د الله تعالی په مخلوقاتو کې د هغه د قدرت په نښو نښانو تفکر او تدبر، د ایمان د بشپړتیا اوقوت لامل ګرځي.

❖ د شپې او ورځې پرله پسې تلل راتلل د الله تعالی په قدرت او وحدانیت دلالت کوي.

❖ د شپې او ورځې بدلون انسان ته لارښوونه کوي چې خپل وختونه منظم کړي او له هغو څخه د خپل پالونکي په اطاعت او پیروۍ کې مناسبه ګټه ترلاسه کړي.




۱. ذکرشوی مبارک آیت په لوړ آواز تلاوت کړئ.

۲. په دې مبارک آیت کې د الله تعالی پر قدرت او وحدانیت څو دلیلونه ذکرشوي دي؟ بیان یې کړئ.

۳. په دې مبارک آیت کې د (السماوات) لفظ په څه دلالت کوي؟ د خپلې وینا د اثبات لپاره په قرآني آیت استدلال وکړئ.

٤. د انسان لپاره د ځمکې څلور ګټې بیان کړئ.

٥. د شپې او ورځې له ګرځېدنې څخه د وختونو په ټاکنه کې څرنګه استفاده کوو؟

٦. د شپې او ورځې څلور فایدې بیان کړئ.

٧. په سمندرونو کې د کښتیو ګرځېدنه انسانانو ته څه ګټه رسولی شي؟

# په کايناتو کې د اللهﷻ د وجود او وحدانيت دلايل (۲)

قال الله تعالى: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [البقرة: ١٦٤]

## ۵. له آسمانه د باران اوريدل

د اللهﷻ د قدرت له نښو نښانو څخه بل دليل له اسمانه څخه باران د اوبو وريدل دي چې د هغو په واسطه وچې او مړې ځمکې راژوندۍ کوي او د ځمکې په مخ ډول، ډول بوټي، واښه او ژوي راپيداکوي اوپه خوځښت يې راولي. په دې ذکرشوي مبارک آيت کې له اسمان څخه مراد هغه لوړ لورى دى چې د ځمکې د پاسه دى. په باوري توګه د باران وريدل له وريځو څخه د اللهﷻ د قدرت له نښو او د هغه د وحدانيت دليل دى، ځکه يوازې اللهﷻ دى چې دا اوبه له وريځو څخه را وروي.

## ٦. د ځمکې ژوندي کول

د ځمکې له ژوندي کيدو څخه مراد دا دى چې الله تعالى د باران د اوبو په را ورولو سره د ځمکې د ودې او رشد طاقتونه- چې د وچوالي او مرګ په حالت کې وي- په خوځښت اوحرکت راولي چې له امله يې په ځمکه کې پټ شيان څرګندوي. هر ډول بوټي، ګلونه، ميوې اوداسې نور راشنه کيږي اوسمسوريږي.

د ځمکې ژوندي کېدل او د ځمکې پر مخ د ډول، ډول نباتاتو اوحيواناتو خوريدنه د الله تعالى د قدرت له لويو نښانو څخه دي.

لکه: څرنګه چې قرآن‌کريم په بل ځاى کې دا موضوع په ځانګړي ښايست سره داسې انځور کړې ده.

**قال الله تعـالى:**﴿وَتَرَى الأرض هَامِدَةً فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا المآء اهتزت وَرَبَتْ وَأَنبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ﴾ [الحج: ۵] **ژباړه:** اوته وچه مړه ځمکه وينې، کله چې مـوږ پرهغې بـاران ووراوه پـه ناڅاپي ډول وخوځيده، ډېره شوه اوهرراز ښايسته ښېرازه نباتات يې راوټوکول.

## ۷. د بادونو لګيدل

د الله تعالی د قدرت او وحدانيت بل دليل دا دی چې هغه په خپل لوړ قـدرت سـره بادونـه او هوا پيداکړې ده، په خپلې ارادې سره يې په حرکت راولي او په خپل حکمت سره يې له يوه لوري نه بل لوري ته اړوي.

د بادونو لګيدنه مختلف ډولونه اوشکلونه لري چې قرآن کريم هريو په جـلا، جـلا نومونـو ياد کړي دي. بادونه کله له ختيځ نه لوېديځ لور ته، کله له لوېديځ نه ختـيځ لـور تـه، کلـه له شمال نه سويل ته اوکله هم لـه سـويل څخه شـمال لـور تـه حرکـت کـوي. همدارنګه بادونه ځانته ډول، ډول حالتونه غوره کوي: طوفاني يـا ملايـم، ګـرم يـا يـخ او تنـد يـا نـرم حالت چې په دې توګه بادونه يا دالله ﷻ د رحمت نښې او يا د هغـه د عـذاب ښېلګـې وي. د بادونوقوت او چټکتيا په داسې اندازه سـخته اوځواکمنـه وي چـې کلـه نـا کلـه پـه ډېـرو هېوادونو کې د هيبتناکې ورانۍ او تباهۍ لامل ګرځي.

ځينـو مفـسرينو فرمـايلي دي: د دې جملـې يادونـه ﴿وَتَصْرِيفِ الرياح والسحاب المسخر بَيْنَ السمآء والأرض﴾ د باران د اوبو په واسطه د ځمکې د را ژوندي کيدو او د ځمکې پـرمخ د ساکښانو له خوځښت نه وروسته، په دې دلالـت کـوي چـې د بـادونو او هـوا پـه وسـيله د ځمکې پر مخ نباتاتو، حيواناتو اوټولو خوځېدونکو ته ژوند حاصليږي، که چيرې الله تعالی بادونه له لګيدو څخه منع کړي ، نو په ډېره لږه موده کې بـه هـېڅ ژوی د ځمکـې پـر مـخ پاتې نشي.

## ۸ په فضا کې ځوړندې وريځې

د الله ﷻ د قدرت له روښانو دلايلو څخه د اسمان په مـخ ځوړنـدې او ولاړې وريځـې دي چې د الله ﷻ د خوښۍ او ارادې تابع او امر منـونکې دي. ظـاهرا کـه چيـرې دغه وريځـې سپکې وي، نو بايد فضا ته پورته شي او ورکې شي او که درنـې وي، نـو بايـد ځمکـې تـه راکوزې شي، خو الله تعالی په خپل قدرت او ارادې سره دغه وريځې په فضا کې خـورې کړې او ساتنه يې کوي، ترڅو د باران اوبه ورڅخه راواوروي.

د﴿السَّحَابِ﴾ د کلمې راوړل د﴿الرِّيَاحِ﴾ څخه وروسته د دې لپاره دي چې بادونه وريځې په حرکت راولي او له يوه ځايه يې بل ځای ته لېږدوي. د بادونو دا حرکت سره له دې چې د ليدو وړ نه دی، خو په خپل ذات کې داسې قوت او ځواک لري چې ونې له ريښو سره راباسي اوآبادۍ نړوي. وريځې هم ډېرې درنې اوبه لـه ځان سره پورته کـوي. کله چې د باران په بڼه ځمکې ته راتوييږي له هغو څخه د ځمکې پر مخ وېروونکـي سيلاوونه را منځته کيږي چې درې او ناوونه ډکوي او لوی لوی دريابونه جوړوي.

## يوازې دعقل او پوهې څښتنان پوهيږي

په دې مبارك آيت کې چې کومې لويې نښې اونښانې ذکرشوې دي، پردې دلالت کـوي چې نړۍ اوکاينات سره له ټولې پراخۍ او لـويۍ يـوحکيم پيـداکوونکی او تـدبيروونکی لري چې هغه د ټولومخلوقاتو معبود اوپالونکی دی. دا ستر دلايل اوځرګندې نـښې يـوازې دعقل او پوهې څښتنان درك کولی شي څوك چې د الله تعـالی د ځـواك اوعظمـت پـه وړاندې د تسليمۍ سرټيټوي.

امـام فخرالـدين رازي (رح) د اللهﷻ نعمتونـه پـه دوه ډولـو - دنيـوي او اخـروي - بانـدې تقسيم کړي دي او وايي: هغه اته شيان چې الله تعالی پـه دې آيـت کـې بيـان کـړي دي، ظاهرا دنيوي نعمتونه دي اوکله چې د عقل خاوندان په هغـو کـې فکـر وکـړي ، نـو د دې نعمتونـو د پيـداکوونکي پېژنـدنې تـه لارمـومي او پـه اخـروي نعمتونـو بـدليږي، خـو لـه دغونعمتونو څخه د دنيوي نعمتونو پـه توګـه ګټـه اخيـستل يـوازې د سـليم عقـل اومعنـوي بصيرت د څښتنانو لپاره حاصليدای شي. له دې کبله الله تعالی د آيت په پای کې فرمـايي، پـه دې ټولـو شـيانو کـې ښـکاره دلايـل دي چـې د عقـل او پـوهې خاونـدان پـرې ښـه پـوهيږي[1]، نوځکـه دعلمـاوو او پوهـانو دنـده او مـسؤوليت دی چـې د اللهﷻ پـه کاينـاتو اومخلوقاتو کې فکر وکړي.

امام آلوسي د دې آيت په تفسير کې ليکي: ابن ابـی الـدنيا او ابـن مردويـه لـه ام المـؤمنين حضرت عايشې (رضی الله عنها) څخه روايـت کـړی دی چـې د اللهﷻ پيغمبـرﷺ دا آيـت ولوست او ويې فرمايل: ﴿ويل لمن قرأها ولم يتفكر فيها﴾ يعنـې هلاکـت او عـذاب دې وي د هغه چا لپاره چې دا آيت ولولي او په هغه کې فکر ونه کړي.

---

۱-تفسير کبيرج۴/ص۲۲۵ دارالفکر۱۹۸۱م

## په طبیعت او کایناتو کې فکر کول د ایمان لور ته لاره پرانیزي

په پورتني آیت کې الله تعالی په کایناتو کې ځینومهمو او ارزښتناکو حقایقو ته اشاره کړې ده چې هر انسان يې ليدلی او درک کولی شي. په دغو حقايقو کې فکر کول د دې لامل ګرځي، ترڅو عاقل او هوښيار انسان له خپلو سترګو نه د غفلت پټۍ لرې کړي، د کایناتو د خلقت په اسرارو کې ځیر شي او په پایله کې دکایناتو پرخالق ایمان راوړي او د زړه له کومې د هغه عبادت او بندګي وکړي.

سره له دې چې انسان په دغه آيت کې ياد شوي حقايق هره ورځ او هر مهال په خپلوسترګو ګوري، خو بيا، بيا ليدل، نسيان او هيرول د دې لامل ګرځي چې انسان په دغو حقايقوکې له تدبر او تفکر نه غفلت وکړي. له همدې امله لايزال خالق هوښيار او عاقل انسان د کایناتو د خلقت په ښېګڼو کې فکر کولو ته رابولي او همدا سبب دی چې د قرآن کریم ډېر آیاتونه په ﴿لعلكم تعقلون، لعلكم تتفكرون، أفلا تعقلون﴾ او داسې نورو جملو سره پای ته رسيږي.

د دغو حقايقو له جملې څخه ترټولو ستر او لومړی حقيقت دا دی چې د آسمانونو او ځمکې وجود ازلي نه دی او نه هم هغه په خپله پيدا شوي دي، بلکې د قادر او حکيم ذات له مخلوقاتو څخه دي.

دويم حقيقت چې په دې آيت کې يې بيان راغلی دی هغه د ځمکې او آسمانونو د خلقت په نتيجه کې د شپې او ورځې رامنځته کېدل او بدلون دی چې د شمسي منظومې او افلاکو په پرله پسې او دايمي حرکت، پراخ، منظم او خلل نه منوونکي دقيق نظام او قانون دلالت کوي. دغه منظم او هر اړخيزه دقيق نظام د عليم، خبير او قدير ذات په وحدانيت او يو والي شاهد دی چې په خپل مطلق او بې ساري علم او قدرت سره يې ځمکې، آسمانونه شپه او ورځ پيداکړي دي.

همدارنګه په دغه آيت کې ډېر نور حقايق هم ذکر شوي دي، لکه: د سمندر د اوبو د څپو پر سر دکښتيو حرکت کول، د باران اوريدل، د وريځو رامنځته کېدل او حرکت کول، د باد لګيدل، له ځمکې نه د وښو او نباتاتو ټوکېدل، رنګ په رنګ حاصلات او مېوې، د ژويو او ساکښانوپيداکېدل او داسې نور چې دا ټول له الهي سننو او دقيقو قوانينو سره سم په هستۍ او کایناتو کې رامنځته کېږي او په کایناتو کې د تفکر لپاره ښه زمينه

برابروي او انسان تـه پـر خپـل خـالق او پـالونکې د ايمـان او د هغـه د عبـادت او بنـدګی لارښوونه کوي.

د دنيا په موجوداتوکې تفکر او تدبر د علم او ساينس په حقـايقو کـې څېړنـه او پلټنـه او د علمي اکتشافاتو په اسرارو پوهېدل دا ټول د الله تعالی د معرفت او پـر هغـه بانـدې د ايمـان راوړلو او د هغه عليم او قدير ذات د عبادت کولو تر ټولو لنډه او آسانه لاره ده.




۱.له اسمانه څخه د باران د اوبو اوريدل د الله تعالی د يووالي او قـدرت دليـل دی. پـه دې هکله څرنګه استدلال کولای شئ؟

۲.د باران د اوبو په وسيله د ځمکې له ژوندي کېدو څخه مطلب څه دی؟

۳.د بادونو لګېدنه د ورېځو پـه جوړښـت، د بـاران پـه ورېـدو او د نباتـاتو او حيوانـاتو پـه ژوندانه څه اغېزه لري؟

٤.وريځې د الله تعالی د قدرت له نښو نښانو څخه بيان شوي دي. په دې هکله توضيـحات ورکړئ.

٥.د مبارک آيت وروستنۍ برخې څوک د کايناتو په هکله په فکـر کولـو مکلـف کـړي دي؟ په دې هکله د آيت وروستنۍ برخه شرحه کړئ.

٦.د مبارک آيت په باره کـې هغـه نبـوي حـديث بيـان او شـرحه کـړئ چـې د الله ﷻ پـه کايناتو او مخلوقاتو کې په فکر کولو ټينګارکوي.




ګرانو زده کوونکو!

په ژوندانه کې د اوبو د ارزښت په هکله يوه مقاله وليکـئ چـې لـه پنځلسو کرښـو څخـه کمه نه وي.

دريم لوست

# په قرآن كريم كې د انسان د پيدايښت پړاوونه

قال الله تعالى: ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ ۞ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ۞ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ [المؤمنون: ١٢-١٤]

**د ځينو كلمو معناوې**

سُلَالَةٍ: خلاصه، نتيجه، سوچه او ثمره.

نُطْفَةً: لږې او حقيرې اوبه (مني).

قَرَارٍ مَكِينٍ: خوندي ځاى (د مور رحم).

عَلَقَةً: تړلې او جامده وينه، د مور د رحم په ديوال نښتې وينه.

مُضْغَةً: د ژوول شوې مړۍ په اندازه د غوښې يوه وړه ټوټه.

خَلْقًا آخَرَ: بل مخلوق، د روح له پوكېدو وروسته كامل انسان.

**ژباړه**

موږ انسان له سوچه خټې څخه جوړ كړ. بيا موهغه په محفوظ ځاى كې د اوبو يو څاڅكى وګرځاوه. بيا مو هغه څاڅكي ته د وينې د يوې ټوټې بڼه وركړه. بيا مو د وينې ټوټه بوټۍ غوښه وګرځوله. بيا مو له بوټۍ غوښې څخه هډوكى جوړ كړ. بيا مو هډوكو ته غوښه ور واغوستله. بيا مو هغه يو بل مخلوق جوړ كړ، الله د ډېر لوړ شان څښتن دى او له ټولو پيداكوونكو نه ښه پيدا كوونكى دى.

**تفسير**

الله تعالى په دې مباركو آيتونو كې خپل د قدرت او عظمت دلايل د انسان په خلقت، د هغه د جوړښت د پړاوونو ، د هغه د ژوند او مرګ او دويم ځلي راژوندي كېدو په ترڅ كې بيان كړي دي، په داسې توګه چې د انسان د پيدايښت مرحله له خاورو څخه پيلېږي او د انسان په بشپړ بدن پاى ته رسيږي.

قرآن كريم په دې مبارك آيت او نورو آيتونو كې فرمايلي دي چې انسان لومړى له خاورې څخه پيدا شوى دى. د انسان پيدايښت له خاورې څخه پيلېږي او د پړاوونو له تېرولو وروسته د ښه او

ښایسته صورت لرونکی انسان ورڅخه جوړیږي. لـه خـاوري څخـه د انـسان د پیدایـښت مـراد دا دی چې الله تعالی د لومړي ځل لپاره آدم عليه السلام له خـاورې څخـه پیـدا کـړ، بیـایې بـي بـي حـوا لـه آدم عليه السلام څخه پیدا کړه، او بیا د انسانانو خلقت او پیدایـښت لـه حـضرت آدم او بـي بـي حـوا څخـه د نکـاح او تناسل په ډول پیل شـو. د انـسانانو اصـل لـه خـاورې څخـه دی، لکـه: څرنګـه چـې الله تعـالی فرمـایي: ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ﴾.

د انـسان د پیدایـښت دویمـه مرحلـه لـه نطفـې څخـه ده، الله تعـالی فرمـایي: ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ﴾ دلته له نطفې نه مراد د نر او ښځې یوځای شوې اوبه (مني) دي.

د انسان د پیدایښت دریمه مرحله علقـه ده، لکـه چـې الله تعـالی فرمـایي: ﴿ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً﴾ علقـه یوه ټوټه وینه ده چې له نطفـې څخـه یـې بـدلون مونـدلی دی. د جنـین پیژنـدنې طبـي پوهـان وایـي: د جنین حجم د علقې په مرحله کې د یـوه غـټ میـږي پـه انـدازه وي چـې د ۱۲- ۱۴ ملـي مترو تـرمنځ اوږدوالی لـري او د رحـم پـه دیـوال پـورې نـښتی وي. د وینـې دا تړلـې وړه ټوټـه وده کـوي او پـه یوې ژوول شوې ټوټې غوښې بـدلیږي چـې قـرآن ورتـه د مـضغې نـوم ورکـړی دی. جنـین د مـضغې په مرحله کې د دریو سانتي مترو پـه کچـه اوږدوالـی لـري چـې د مـخ او پـزې نـښې پـه هغـه کـې د ډېرو نریو خطونو په ښه جوړیږي.

دا ټوټه غوښه (مضغه) د الله جل جلاله په قـدرت اومـشیت خپـل پرمختـګ اوبـدلون تـه دوام ورکـوي، ترڅـو د هډوکو د هیکـل مرحلـې تـه رسـیږي، پـه دې هکلـه قـرآن کـریم فرمـایي: ﴿ فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا﴾ اوبیا دا د هډوکو هیکل په غوښو یاعضلي جهاز پوښـل کېـږي، لکـه: چـې مبـارك آیـت یـې بیـانوي: ﴿فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا﴾ یعنې بیامو هغه هډوکي په غوښه وپوښل.

دلتـه قرآنـی آیـت هغـه حقیقـت تـه اشـاره کـوي چـې د ۲۱ پیـړی انـسان حیرانـوي او هغـه دا چـې هډوکي او د هډوکوهیکل په جنین کې له عضلي جهاز څخه مخکې منځ ته راځـي. کـوم حقیقـت چې د جنین پېژندنې علم په وروستیو کې کشف کـړی هغـه دا دی چـې پـه بنـسټیزه توګـه د هـډوکو سلولونه له عضلي سـلولونو څخـه تـوپیرلري او د هـډوکو سـلولونه لـه عـضلي سـلولونو څخـه مخکـې رامنځته کیږي. اوهېڅ عضلي سلول نه دی لیدل شوی چـې د هـډوکو د سـلولونو لـه بـشپړېدو مخکـې جوړشوی وي. دا حقیقت قرآني نص ۱۴۰۰ کالـه دمخـه ثابـت اوتاییـد کـړی دی، لکـه: څرنګـه چـې الله تعالی فرمایي ﴿فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا﴾ اوبیا مـو د غوښـې ټوټـه پـه هـډوکو بدلـه کړه او هډوکي مو په غوښه وپوښل.

وروسته بیا په جنـین کـې روح پوکـول کېـږي او د هغـه غـړي وده او پرمختـګ کـوي او پـه بـشپړ او کامل انسان بدلیږي، چې قرآني نص ورته داسې اشاره کړې ده:

﴿ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾. وروسته له هغه مو د هغه يو بل پيدايښت وکړ (چې هماغه کامل انسان دی)، نو پاک او مبارک دی هغه ذات چې تر ټولو غوره پيداکوونکی دی.

**په دې آيتونوکې د قرآن کريم علمي (ساينسي) اعجاز**

پورتني متبرکه آيتونه د قرآن عظيم الشأن د علمي اعجاز له روښانو دلايلو څخه ګڼل کېږي، ځکه چې د قرآن عظيم الشأن وېناوې په دې آيتونو او نورو آياتو کې د انسان د خلقت او د هغه د مختلفو مرحلو په اړه داسې دقيقې او حيرانوونکې دي چې د الله تعالى له خوا له وحې پرته بل کوم مصدر او منبع نشي لرلی. هغه څه چې د طب علم او جنين پېژندنې په شلمې او يوويشتمې پيړۍ کې له ډېرو څېړنو او د پرمختللو وسايلو له کارولو نه وروسته کشف کړل، قرآن عظيم الشأن پنځلس پيړۍ دمخه په ډېر دقت او څرګند ډول دا موضوع بيان کړې ده.

پورتنيو آياتونو د انسان د خلقت او مرحلو ته اشاره کړې ده. دغه پړاوونه په اوسني عصر کې د طب د علم له مهمو څېړنيزو موضوعاتو څخه شمېرل کيږي.

نوې علمي څېړنې، سره له دې چې د انسان دخلقت د مرحلو په هکله د قرآن عظيم الشأن دې وېناو چې پنځلس سوه کاله پخوا يې کړيدي پخلى کوي. د قرآن عظيم الشأن له خوا په ډېر دقت سره د هرې مرحلې نومول او د جنين د رشد، ودې او د هرې مرحلې لپاره د نويو او حيرانوونکو کلماتو کارول او هغه په داسې اوصافو يادول، لکه: **نطفه، قرارمکين، علقة، مضغة**، د هډوکو د هيکل جوړيدل، په غوښو او عضلو د هډوکو پوښيدل او د داسې نورو چارو تاييد کوي.[1]

د طب د علم د معاصرو پوهانو له ډلې څخه يوعالم داسې وايي: (د قرآن عظيم الشأن د آيتونو له مجموعې څخه چې د انسان د خلقت په هکله دي لاندينى مراحل څرګنديږي:

( د نطفې مرحله – د علقې مرحله – د مخلقه او غير مخلقه مضغې مرحله - د هډوکو مرحله - په غوښو د هډوکو د پوښېدلو مرحله - د شکل او صورت د بشپړيدلو مرحله ( د کامل انسان مرحله) - د روح د پوکولو مرحله).

د نطفې اطلاق پر درې شيانو کيږي: د سړي نطفه يعنې منوي حيوانات، د ښځې نطفه يعنې بويضه يا هګۍ، مختلطه يا يوځاى شوې نطفه چې د نارينه او ښځينه نطفو د يوځاى کېدونه توليديږي او په قرآن عظيم الشأن کې ورته د امشاج نطفه ويل شوې ده. ﴿إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ﴾ [الإنسان: ٢] يعنې بېشکه موږ انسان له ګډې شوې نطفې څخه پيداکړی.

---

١- مباحث في اعجازالقرآن للدکتورمصطفى مسلم،ص ٢٣٢ دارالمسلم – رياض ١٩٩٦م

دا پړاو په خپلو دقیقو بدلونونو سره یوه اونۍ نیسي او وروسته له هغه بیا دویمه مرحله یعنې د علقې مرحله پیل کیږي.

د علقې مرحله دوه اونۍ دوام کوي اوجنین په دغه پړاوو کې ځان ته د تړلې وینې بڼه غوره کوي او حجم یې یو ملي میټر وي. د رحم په دیوا ل پورې نښتي وي او قرآن عظیم الشأن ورته په ډېردقت سره دعلقې نوم ورکړی دی.

له دې وروسته د مضغې مرحله ده . په دې پړاو کې جنین دیوې بدني کتلې په بڼه څرګندیږي.

د جنین شکل په دې پړاو کې د یوې ټوټې ژوول شوې غوښې په څېروي چې له خولې نه بهر اچول شوې وي، د مضغې کلمه هم همدا معنا ورکوي او قرآن‌کریم ورته مناسب او دقیق نوم ورکړی دی.

څلورمه مرحله د هډوکو او غوښو د تکوین او جوړښت مرحله ده چې د جنین د عمر په پنځمه،شپږمه او اومه اونۍ کې بشپړیږي او په ترڅ کې یې د وجود لاندینی او پاسنی غضروفي هیکل جوړیږي. د جنین په اندامونو د عضلاتو لومړنۍ نښې د جنین دعمر په اوومه اونۍ کې څرګندیږي چې دا پرعضلاتو د هډوکو د جوړښت په تقدم اومخکې والي دلالت کوي... وروسته بیا هډوکي په عضلاتو پوښول کېږي، لکه: څرنګه چې قرآن عظیم الشأن یې په هکله فرمايي: ﴿فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا﴾.

وروستۍ پړاو د جنین د صورت د بشپړیدو او د روح د پوکولو پړاو دی چې په آیت کې ورته د ﴿خلقا آخر﴾ یا بل مخلوق نوم ورکړ شوی دی. الله تعالی د قرآن عظیم الشأن په بل آیت کې د دې پړاو په هکله داسې فرمايي: ﴿هُوَ الَّذِي يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ﴾ [آل عمران: ۶] یعنې الله هغه ذات دی چې د میندو په رحمونو کې تاسې ته د خپلې خوښې صورتونه درکوي.

﴿يَا أَيُّهَا الْإِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ۝ الَّذِي خَلَقَكَ فَسَوَّاكَ فَعَدَلَكَ۝ فِي أَيِّ صُورَةٍ مَا شَاءَ رَكَّبَكَ﴾ [الإنفطار: ۶-۸] یعنې ای انسانه! ته څه شي په خپل مهربان او عزتمن رب تېر ایستلې، هغه رب چې ته یې پیدا کړې، نوسم یې کړې ته او ستا هرڅه یې برابر کړل اوپه کومه څېره چې د هغه خوښه وه ته یې ونښلولې.

په دې مرحله کې د جنین د غړو د جوړښت عملیه دوام لري هره ورځ او هر ساعت په هغه کې بدلون راځي او په دقیقه اومنظمه توګه وده کوي.[۱]

---

۱- په اختصار سره له – خلق الانسان بین الطب والقرآن – ص--۳٦٥ -۳۷۹

څرنګه چې د پیغمبرﷺ احادیث د قرآن عظیم الشأن دآیتونو تفسیر کوي ، نو په ځینو احادیثو کې د انسان د خلقت مراحل داسې شرحه شوي دي.

په هغه حدیث کې چې امام مسلم (رحمه الله) روایت کړی دی په هغه کې رسول اللهﷺ داسې فرمايي «إِذَا مَرَّ بِالنُّطْفَةِ ثِنْتَانِ وَأَرْبَعُونَ لَيْلَة بَعَثَ اللَّه إِلَيْهَا مَلَكًا فَصَوَّرَهَا , وَخَلَقَ سَمْعهَا وَبَصَرهَا وَجِلْدهَا وَلَحْمهَا وَعِظَامهَا , ثُمَّ قَالَ: يَا رَبّ , أَذَكَر أَمْ أُنْثَى ؟ فَيَقْضِي رَبّك مَا شَاءَ وَيَكْتُب الْمَلَك»[1] **ژباړه:** کله چې د نطفې له عمرڅخه ۴۲ شپې تېرې شي، الله تعالی ورته پرښته ورلېږي، ترڅو د هغه صورت بشپړ کړي او د هغه غوږونه، سترګې، پوستکی، غوښه او هډوکي جوړ کړي. وروسته بیا پرښته له اللهﷻ څخه پوښتنه کوي: دا جنین هلك دی که نجلۍ؟ نو اللهﷻ هغه پرېکړه کوي چې څه یې غوښتي وي او پرښته یې لیکي.

د قرآن عظیم الشأن د آیتونو له مجموعې او د نبوي احادیثو نه دا څرګندېږي چې د جنین د اعضاوو جوړښت او د جنس تعیین یې د تناسلي غدوپه تشخیص سره په څلوېښتو ورځو کې ترسره کیږي.

په دې ترتیب موږ ګورو چې د جنین د ویش مراحل چې د علمي څېړنو او اکتشافاتو پر بنسټ حاصل شوي. یوازې دا نه چې له قرآن سره مطابقت لري، بلکې په دې لړ کې د قرآن عظیم الشأن تعبیرات او اصطلاحات له ډېر دقت نه برخمن دي.

هغه څه چې مو د قرآن عظیم الشأن په آیتونو کې د انسان د خلقت د مراحلو په هکله ولوستل که له یوې خوا د الله تعالی په وجود او وحدانیت شاهدي ورکوي له بلې خوا د ټول بشریت لپاره د الله تعالی له لوري د آخري پیغمبر په توګه د حضرت محمدﷺ د رسالت او نبوت په ریښتینولۍ او د الله تعالی له لوري د بشریت د هدایت او لارښوونې لپاره د هغه د ریښتیني کتاب قرآن مجید په حقانیت دلالت کوي.

له نن څخه پنځلس سوه کاله پخوا په ډېر دقت او تفصیل سره د انسان د خلقت د مراحلو په اړه داسې نوې او حیرانوونکې خبرې یوازې او یوازې د الهي وحې له لارې ممکنې وې. هغه مهال نه په مکه، نه په مدینه او نه هم د هغه وخت پرمختلفو ښارونوکې د انسان د خلقت د اسرارو په اړه د طبي زده کړو او څېړنو کوم مرکز شتون درلود. نه داسې وسایل وو چې د هغو په کارولو سره د جنین د ودې، رشد او خلقت پټ اسرار کشف کړای شي نه هم هغه څوك چې قرآنکریم پرې نازل شوی و، یعنې حضرت محمدﷺ د طب او جنین پېژندنې کوم سبق ویلی و. الله تعالـــی

---

۱- رواه مسلم – کتاب القدر،ج۸/ص۴۵

په دې اړه څه ښه او رښتیا فـــرمایلي دي:﴿ إن في ذلك لآيات لقوم يتفكرون﴾ [الرعد:۳] **ژباړه:** بېشکه په دې تړلو کې د هغو خلکو لپاره پوره دلایل دي چې له غور او فکر څخه کار اخلي.

## د لوست ګټې اولارښوونې

له ذکرشویو آیتونو څخه ځینې لارښوونې دا دي.

- ❖ په دې مبارکو آیتونو کې د الله ﷻ د قدرت، علم او حکمت دلیلونه او نښانې بیان شوي دي.
- ❖ قرآن کریم د انسان د پیدایښت مراحل بیان کړي دي.
- ❖ د انسان پېدایښت تصادفي او بې ګټې نه دی. له لومړي جوړښت نه وروسته د پېدایښت تر مهاله د الله تعالی تر بشپړ رعایت او توجه لاندې دی.
- ❖ قرآن کریم د انسان خلقت او جوړښت په دقیقه توګه بیان کړی. په داسې حال کې چې د طب علم په خپلو پرمخ تللو وسایلو سره په دې وروستیو وختونو کې دې حقیقتونو ته لار موندلې ده.
- ❖ قرآن کریم جنین د پیدایښت په مختلفو مراحلو کې په داسې نومونو ستایلی چې د جنین له واقعي حالت سره کامل او بشپړ سمون لري. حال دا چې طبي څېړنو د قرآن کریم له نازلېدو څخه په پېړیو وروسته دا حقایق کشف کړي او یوازې د هغه مرحلې یې ذکر کړي دي.
- ❖ په یادو شویو اوصافو بانډې د انسان د جوړښت او خلقت پړاوونه د قرآن عظیم الشأن په اعجاز او د الله ﷻ په قدرت او وحدانیت دلالت کوي.




۱. د جنین د جوړښت د مرحلو نومونه په هغه ترتیب واخلئ چې په ذکر شویو آیتونو کې راغلي دي.
۲. د جنین د جوړښت د هغو مرحلو معنا چې قرآن کریم بیان کړې ده څرګنده کړئ.
۳. د قرآن کریم علمي اعجاز په ﴿فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا﴾ آیت کې د طبي علومو د اکتشافاتو او د نوي عصر د جنین پېژندنې په اړوند تشریح کړئ.
٤. قرآن کریم په ذکر شویو مبارکو آیتونو کې د انسان خلقت او جوړښت په څو مرحلو کې بیان کړی؟ څرګند یې کړئ.
۵. د جنین د جوړښت، ودې او بشپړتیا په اړه مو چې د بیالوژۍ په مضمون کې څه لوستلي دي د قرآن عظیم الشأن د هغو آیتونوپه رڼا کې سره پرتله کړئ چې د انسان د خلقت او پیدایښت په هکله دي.



د قرآن عظیم الشأن د آیتونو په رڼا کې او د تازه علمي اکتشافاتو نه په استفادې سره د انسان د خلقت په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

څلورم لوست

# د بني آدم وقار او درنښت

قـــال الله تعـــالی: ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا﴾ [الإسراء: ٧٠]

**ژباړه**

او بېشکه موږ بني آدم ته عزت ورکړ اوهغوته موپه وچه او لمده کې سپرلۍ ورکړې او هغو ته موله پاکو شیانو څخه روزي ور په برخه کړه او پر خپلو زیاترو مخلوقاتو مو ښکاره لوړتیا وروبښله.

**تفسیر**

الله تعالی په ذکر شوي مبارک آیت کې پر ټولو مخلوقاتو باندې د بني آدم فضیلت او غوره والی بیان کړی دی او د خپلو ځینو نعمتونو چې پر انسان یې پیرزو کړي دي یادونه کوي.

الله تعالی انسان ته په نطق، بیان، عقل، علم، توازن او د بدن او صورت په ښکلا د ځمکې د سرپر نورو مخلوقاتو لکه: پیریان او حیواناتو برتري او غوره والی ورکړی دی.(۱) ځینې مفسرین د انسانانو د هدایت او لارښوونې لپاره د پیغمبرانو علیهم السلام رالیږل د انسان د عزت او تکریم مثال او نمونه بولي.(۲) په ځینو تفاسیرو کې د انسان د لیک او لوست قوت د انسانانو د تکریم او عزت نښه ګڼل شوې ده.(۳) هغه څه چې مفسرینو د انسانانو د فضیلت او غوره والي په هکله یاد کړي دي یوازې د مثال او نمونې په ډول دي، ځکه د انسان د عزت او تکریم انواع او بېلګې دومره زیاتې دي چې له شمیره وتلي دي.(٤)

باید وپوهېږو چې د الله جل جلاله له لوري د انسان تکریم اوعزت د انسانانو بني نوعې ته شاملېږي،(۵) او یوازې یوې ډلې او یا خلکو ته ځانګړی نه دی، ځکه په دې آیت کې د (بني آدم) لفظ مطلق ذکر شوی دی او د ټولو انسانانو (نارینه او ښځینه) جنس ته شاملېږي.

په دې مبارک آیت او د قرآن عظیم الشأن او نبوي سننو په نورو نصوصو کې د انسان او انساني حقوقو په اړه لیدل کېږي چې د اسلام دین د الهي اخري دایمي او شامل دین او قانون په حیث، په یو مناسب وخت او زمان کې د انسان د تکریم او عزت اعلان وکړ او د هغه حقوق

---

١ - ایسر التفاسیر – د ابوبکر الجزایري تالیف، ص۳۵۷
٢- التفسیر المیسر- ص۶۴
٣ - تفسیر البحر المحیط- ج۶- ص۸۵
٤ — تفسیر البحر المحیط- ج۶- ص۸۵
٥- تفسیر ابن عجیبه- ص۳۴۹

يې هغه وخت له تېري او تعرض څخه وژغورل او خوندي يې کړل. کله چې بېوزلی انسان د ظلمونو، تېريو اوبندګۍ ښکار و او د ډېرځله له هغه سره د څارويو په څېر او يا تر هغې هم بده او ناوړه معامله ترسره کېدله، په داسې حال کې چې د بشر د حقوقو او د هغې د نړيوالې اعلاميې کوم پته نه و او نه هم د بشر د حقوقو د ساتنې لپاره کوم قانون او يا ادارې شتون درلود.

د انسان د عزت او کرامت ځينې نمونې په لاندينيو مثالونو کې په تفصيل سره بيان شوې دي.

### ۱. توازن او د شکل او صورت ښکلا

الله تعالی انسان ته د عزت، کرامت او فضيلت په نعمت سره په خپلو نورو مخلوقاتو لوړتيا او غوره والی ورښنلی دی.

د انسان د عزتمندۍ او غوره والي نمونې د نورو مخلوقاتو او څارويو په پرتله زياتې دي چې ځينو ته يې اشاره کوو. د انسان عزتمندي په دې معنا چې هغه يې په ښايسته او مناسب شکل او بڼه پيدا کړی، دی. لکه: څرنګه چې الله تعالی فرمايلي دي: ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الإنسان فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ﴾ [التين: ٤] يعنې موږ انسان په ډېره ښه بڼه پيدا کړ.

پرته له شکه توازن او د شکل او صورت ښکلا د الله ﷻ له لوري د انسان د تکريم اوعزت څرګنده نښه ده.

د انسان په پيدايښت کې د عزت او غوره والي بله نښه دا ده چې نور حيوانات پاکي او نظافت نه پېژني، د ځان په پټولو نه پوهيږي، د خوب، استراحت او د خوراک اوڅښاک کړنلاره نه پيژني، ګټې نشي لاس ته راوړلی او د ضرر او تاوان مخنيوی نشي کولای، ټول حيوانات له عقلي او فکري ځانګړتياوو، پوهې، پرمختګ او تمدن څخه محروم دي. يوازې انسان دی چې له ټولو امتيازاتو څخه برخمن دی. عبدالله ابن عباس(رضي الله عنهما) د انسان د عزتمندۍ او غوره والي ډېر ښايسته تمثيل کړی دی او داسې فرمايي: د حيواناتو په خلاف انسان خپله خوله د ډوډۍ خوړلو لپاره ځمکې ته نه ښکته کوي، بلکې په خپلو ګوتو خوراک پورته کوي. همدارنګه د څښلو لپاره خپله خوله اوبو ته نه ښکته کوي، بلکې د ګيلاس يا لوښي په واسطه اوبه را اخلي او څښي يې.[۱]

### ۲. د وچې تسخيرول

د انسان دعزت او لوړتيا له نښو څخه بله نښه دا ده چې الله تعالی د طبيعت قوتونه او هغه څه چې په ځمکه کې دي د انسان تابع ګرځولي دي. همدارنګه په ستورو او افلاکو کې يې دهستۍ قوتونه د انسان د خدمت او هوساينې لپاره پيداکړي دي. په دې آيت کې الله تعالی پر انسانانو احسان او پيرزوينه کړې ده او دی يې په وچه کې پر مختلفو حيواناتو برلاسی کړی

۱-تفسيرالتحرير والتنوير- لابن عاشور- ج،۸- ص ۳۴۹

دی. ده ته یې ټول تابع کړي دي چې له هغوڅخه د خپلې ګټې اوښیګڼې لپاره کار واخلي.
همدارنګه انسان ته یې قدرت وربښلی چې د تګ راتګ اوانتقال له وسایلو څخه په فضا، وچه او سمندر کې، لکه: ځاروي، موټر، اورګاډي، کښتۍ او الوتکو څخه د خپلې ګټې او هوساینې لپاره کار واخلي. الله تعالی فرمايي: ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهَارَ ۞ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَائِبَيْنِ وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۞ وَآتَاكُمْ مِنْ كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ﴾ [الإبراهیم: ۳۲-۳٤]

**ژباړه:** الله هغه ذات دی چې آسمانونه او ځمکه یې پیدا کړل او له اسمان څخه یې اوبه راواورولې، بیایې د هغو په وسیله تاسې ته د روزۍ لپاره ډول ډول مېوې پیدا کړې، او بېړۍ یې ستاسو لپاره تابع او ایل کړې چې په سمندر کې د الله په حکم روانې شي او سیندونه یې ستاسې لپاره جاري کړل او ګټور یې وګرځاوه ستاسې لپاره لمر او سپوږمۍ چې د دنیا تر پایه په نه ستړي کیدونکي توګه چلیږي او شپه او ورځ یې ستاسې لپاره په کار اچولې ده.
هغه څه چې تاسو غوښتل هغه یې درکړل، که تاسې وغواړئ چې د الله ﷻ نعمتونه وشمېرئ، نوشمیرلی یې نشئ. حقیقت دا دی چې انسان ډېر بې انصافه او ناشکره دی.

### ۳. له سمندرونو څخه ګټه اخیستل

د الله ﷻ له لوري انسان ته د عزت ورکولو بله نښه دا ده چې په سمندرونو باندې یې ورته د تسخیر قدرت ورکړی دی. الله تعالی انسان ته د بېړۍ جوړولو وس اوتوان ورکړی چې د هغې په واسطه خپلې اړتیاوې پوره کړي او ډول ډول ګټې ورڅخه واخلي، سمندر د انسان لپاره یوه بله نړۍ ده چې د وخت په تېریدو سره په هغه کې نوي رازونه برسیره کیږي، له سمندر څخه اوس مهال په ډول ډول طریقو ګټه اخیستل کیږي چې په پخوا زمانو کې د انسان علم له هغونه عاجز وه.

**فعالیت**

زده کوونکي دې له سمندرونو څخه د ګټې اخیستلو صورتونه تر بحث او څېړنې لاندې ونیسي او بیا دې څو تنه په دې هکله د ټولګیوالو په وړاندې خبرې وکړي.

### ٤. پاکه او حلاله روزي

انسان ته د الله تعالی د عزت ورکولو بله نښه دا ده چې ده ته یې الهام کړی له هغو حلالو شیانو څخه چې یې غوښتي وي خپل خوراك لاس ته راوړي. انسان د الهي نعمتونو سره د عادت له امله کله، کله دغه نعمتونه هېروي اوهغه وخت یې په ارزښت پوه شي چې ورڅخه محروم شي. کله چې انسان په غړېدلو سترګو او ویښ زړه وګوري ، نو د الله ﷻ نعمتونه په ټولو ځایونو او په ټولو شیانو کې کتلی شي. لمر، هوا، اوبه، روغتیا، د ګرځېدو وړتیا، حواس،

عقل، او د خوړلو او څښلو ډېر شیان، دا ټول الهي نعمتونه دي چې انسان ته يې ور په برخه کړي دي. الله تعالی انسان ته د خوړلو او څښلو بې شمېره ډول، ډول نعمتونه ورکړي دي. کوم شیان چې انسان ورڅخه د خوړلو او څښلو لپاره ګټه اخلي هغه په څو، څو برابره له هغه څه نه چې نور حیوانات ورڅخه ګټه ترلاسه کوي ، ډېردي. له همدې کبله الله تعالی د پاکې اوحلالې روزي احسان پر انسان باندې کړی دی اوفرمايي:﴿ وَرَزَقْنَاهُمْ مِّنَ الطيبات﴾. کوم پاك او مزه دار خواړه چې الله تعالی پر انسانانو پيرزو کړي دي. هغه ډېر زيات دي چې هېڅکله يې شمیرلای نشو او هر ډول ګټه اخیستلوته شاملیدلی شي. الله تعالی دغه نعمتونه په ځانګړي ډول خپلو مخلصو او مؤمنو بندګانو لپاره خاص کړي دي، خو دا يې پرې لازم کړي دي چې د دغو نعمتونو په وړاندې د الله ﷻ شکر ادا کړي او له اسراف او د الله تعالی په وړاندې له سرغړونې څخه ځان وژغوري.

**۵. پر نورو مخلوقاتو دانسان فضیلت او غوره والی**

انسان ته د الله ﷻ د عزت ورکولو بله بېلګه دا ده چې هغه ته یې د عقل، فکر او پوهې له امله پر نورو مخلوقاتو فضیلت او لوړتیا ورکړې ده. د انسان تر ټولو لوی فضلیت او غوره والی د ځمکې پر مخ د هغه خلیفه ګرځول دي چې هغه يې په وړتیاوو او ځانګړتیاوو سمبال کړی او پر نورو مخلوقاتو يې غوره ګرځولی دی. ټول مسلمان علماء او پوهان په دې آند او نظر دي چې بني آدم په مطلقه توګه له پيريانو او نورو مخلوقاتو څخه لوړ او ډېر غوره دی. ځانګړي بني آدمان له پرښتو څخه غوره دي، خو په عامه توګه پرښتې له عامو انسانانو څخه غوره ګڼل کيږي.

امام رازی( رح) د تکریم او تفضیل ترمنځ د توپیر په هکله چې په تکریم سره دا مبارك آیت شروع شوی او په تفضیل پای ته رسیدلی داسې وايي: انسان ته پر نورو حیواناتو غوره والی اوعزت د طبیعي او ذاتي امورو، لکه: عقل، نطق، ښه، ښه قد او قامت له مخې ښنل شوې دي، خو د رښتینو عقایدو او غوره اخلاقو حاصلول انسان ته فضیلت وربښي.[۱]

**د لوست ګټې اولارښوونې**

❖ پرټولو ځمکنیو مخلوقاتو باندې د انسان د کرامت اوغوره والي اعلان.

❖ الله تعالی پر انسان احسان کړی، پر هغه يې د خپلو نعمتونو پيرزوینه کړې ده او هغه يې د عزت او تکریم په لوړو مرتبو نازولی دی.

---

(۱) تفسیر مفاتیح الغیب – لفخرالدین الرازی ج ۲۱/ ص۱۷.

❖الله تعالی انسان په وچه او سمندرکې د طبیعت پر ځواکونو مسلط ګرځولی، ترڅو له هغو څخه ګټه ترلاسه کړي.

❖الله تعالی د طبیعت قوتونه په کایناتو کې د انسان د خدمت او ګټې لپاره تابع کړي دي.

❖الله تعالی د انسان لپاره تر ټولو غوره او سپیڅلي خواړه برابر کړي دي او د ده خوراک او څښاک تر ټولو حیواناتو، مرغانو او خزندګانو غوره دی.

❖ څرنګه چې انسان د الله تعالی معزز او مکرم مخلوق دی ، نو په هغه لازمه ده، ترڅو خپل دغه عزت او منزلت ته متوجه وي او داسې عمل ونه کړي چې د هغه د انساني کرامت او عزت خلاف وي.

❖ د الله تعالی له اوامرو نه سرغړونه، لکه: کفر اختیارول، له الله ﷻ سره شریک نیول او ګناه کول د انسان له مقام سره چې د ځمکې پرمخ د الله تعالی غوره مخلوق دی، مناسب کار نه دی.

❖ د انسان کرامت او د هغه شرعي اوبشري حقوق له تېري نه محفوظ دي او هیڅوك دا حق نه لري چې د هغه پر ځان، مال، وقار او عزت تېری وکړي.

❖ د انسان د حقوقو رعایت او د هغو ساتنه د هر مسلمان وجیبه او شرعي مسؤولیت دی. په اسلامي ټولنه کې وګړي، کورنی، ټولنه او دولت د بشری حقونو د ساتنې او مراعاتولو دیني مکلفیت لري.




۱. په تېر شوي مبارك آیت کې د انسان لپاره د پنځو عزتونو او فضیلتونو یادونه شوې ده، هغه بیان کړئ.

۲. د انسان لپاره په وچه کې د الهي نعمتونو نمونې په لنډه توګه څرګندې کړئ.

۳. د انسان او نورو ژویو او ساکښو د رزق او روزي ترمنځ توپیر څه دی؟

٤. انسان د دې ټولو عزتونو او نعمتونو په وړاندې، چې الله ﷻ ور په برخه کړي دي، څه مکلفیت لري؟

٥. (د بني آدم له ځانګړتیاوې دا دي چې حتا له ملایکو څخه هم غوره والی لري) دا مطلب شرحه کړئ.

٦. د انسان د تکریم او فضیلت ترمنځ توپیر څه دی؟




زده کوونکي دې د قرآني آیتونو او نبوي احادیثو نه په استفادې سره د انساني کرامت او بشري حقونو د ساتنې او پر هغې د تېري نه کولو په اړه یوه مقاله ولیکي چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

# آیةالکرسي د قرآن لوړه څوکه

قــال الله تعــالى: ﴿اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مَنْ ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ﴾ [البقرة: ۲۰۰]

### د کلمو معناوې

الْحَيُّ: تل ژوندی.

الْقَيُّومُ: په خپل ذات ولاړ، د نورو ساتونکی او سمبالوونکی.

سِنَةٌ: پرکالي، پریشاني.

وَلَا يَئُودُهُ: هغه نه ستړی کوي، پرهغه دروندوالی نه راولي.

### ژباړه

الله ﷻ یو ذات دی، له هغه ژوندي ابدي ذات څخه پرته چې ټول کاینات یې سمبال کړي دي، بل هیڅ اله (معبود ) نشته، هغه نه ویده کېږي اونه پرکالي پرې راځي. په اسمانونو او ځمکه کې چې هر څه دي، د هغه دي. څوک دی چې د هغه په وړاندې د هغه له اجازې پرته سپارښت و کړای شي؟ څه چې د بندګانو په وړاندې دي پر هغو هم خبر دی او څه چې له هغوی نه پټ او د هغوی ترشا دي پر هغو هم خبردی او د الله ﷻ له معلوماتو څخه هېڅ شی د هغوی ( بندګانو) په ادراک کې نشي ایساریدای مګر دا چې د کوم شي علم ورکول هغه په خپله وغواړي. د هغه د کرسی پراختیا له اسمانونو او ځمکې نه لویه ده او د هغو (اسمانونو او ځمکې) ساتنه د هغه لپاره کوم ستومانوونکی کار نه دی. یوازې هماغه، یو، لوی او لوړ ذات دی.

### تفسیر

### د قرآن لوړه څوکه

آیة الکرسي په لسو مستقلو او خپلواکو جملو مشتمله ده چې هره جمله یې د الله ﷻ له یووالي او ښایسته او جلیله صفتونو څخه بحث کوي.[1] په دې آیت کې اتلس ځله د الله ﷻ نومونه د

---

۱ – دابن کثیر دتفسیر مختصر ج۱/ص۲۳۰

ظاهر اسم او یا د ضمیر په بڼه ذکر شوي دي. د غه مبارك آیت د قرآن کریم له ډېرو لویو آیتونو څخه دی چې‌د فضیلت په هکله یې ډېر احادیث نقل شوي دي. په یو صحیح حدیث کې د الله ﷻ له پیغمبر ﷺ څخه نقل شوي چې فرمایي: آیة الکرسی د قرآن له لویو آیتونو څخه ګڼل کیږي[1]. په بل حدیث کې راغلي دي: د الله تعالی اسم اعظم په همدې آیت کې دی[2]. په یو بل حدیث کې راغلي دي: د هر شي لپاره لوړه څوکه وي او د قرآن لوړه څوکه د بقرې سورت دی. په هغه کې یو داسې آیت دی چې د قرآن امام او لارښود دی او هغه آیة الکرسي ده.

آیة الکرسي د الله ﷻ د وحدانیت په صفت سره پیل شوې ده:﴿ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ﴾، نو الله ﷻ هغه یوازینی ذات دی چې د عبادت او لمانځنې وړدی او د الله ﷻ دا صفت د دین بنسټ دی. انسان یوازې د الله ﷻ بنده دی او له هغه پرته د بل چا عبادت نه کوي اونه هم پرته له الله ﷻ څخه بل چاته مخ اړوي او نه هم له چا نه مرسته غواړي.

بل صفت چې په آیة الکرسي کې ذکر شوی هغه د الله ﷻ د **حیات** او **قیومیت** صفت دی: ﴿**الحي القيوم**﴾. د حیات(ژوند) صفت چې الله ﷻ ته ثابت شوی، تل او همیشنی ذاتي ژوند دی چې فنا او زوال نه لري دا حیات د هغه ژوند په څېر نه دی چې بشر یې پیژني.

**د الله ﷻ د قیومیت صفت:** الله تعالی هغه ذات دی چې د ټولو کارونو د تل لپاره تدبیر کوونکی او اداره کوونکی دی. الله ﷻ په خپل ذات قایم دی، خو د الله ﷻ نه پرته هر څه چې دي د الله ﷻ په ارادې قایم دي.

په **آیة الکرسي** کې د الله تعالی لپاره بل ذکر شوی صفت دا دی چې په الله تعالی خوب او پریشاني نه راځي او له هر ډول خوب څخه بې پروا او بې حاجته دی:﴿ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ﴾، او الله ﷻ له دې ټولو اړتیاوو څخه پاك او سپیڅلی دی.

الله تعالی د آسمانونو او ځمکې یوازینی مالك او متصرف دی او هر څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي ټول د الله ﷻ په واك او اختیار کې دي. هر چاته یې چې وغواړي وربښي یې او چاته یې چې ونه غواړي له هغه نه یې منع کوي.﴿ لَهُ مَا فِي السماوات وَمَا فِي الأرض﴾. دا مبارك آیت مطلق ملکیت د الله ﷻ لپاره ثابتوي. او د الله ﷻ ریښتیني بندګان پردې ټینګ ایمان لري چې ټول شیان د الله ﷻ په واك کې دي او د الله ﷻ په اراده منځ ته راځي د همدې ایمان له مخې د رضایت احساس کوي او خپل ژوند په قناعت سره تېروي.

---

۱-المعجم الکبیرللطبراني – ۸۵۳۵ حدیث .
۲-د امام احمد بن حنبل مسند۶/۴۶۱

**د الله تعالی بل صفت:** په مبارك آيت كې د الوهيت او معبوديت د مقام تثبيت او توضيح ده په دې ډول چې الله تعالی يوازينی برحق معبود او ټول مخلوقات د هغه بندګان دي چې د ده له عبوديت څخه نشي وتلی.﴿ مَن ذَا الذي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ﴾. يعنې هېڅوك د الله له اجازې پرته شفاعت نشي كولای. په دې مبارك آيت كې له بتانو او نورو ناحقو معبودانو څخه هر ډول مرسته او شفاعت، چې مشركان او كفار د هغو دعوی لري، رد شوی دی. د﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ مبارك آيت د الله تعالی د علم صفت او بشپړ حاكميت تثبيتوي. د الله تعالی علم مطلق دی چې تېرې، موجودې او راتلونكې زمانې ته شامليږي، همدارنګه هغه په ظاهر، باطن، پټ، ښكاره او د دنيا او آخرت په ټولو چارو خبر دی.

انسان په خپل لږ علم او پوهې سره په لږو شيانو پوهېدلی شي ﴿وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَآءَ﴾. الله تعالی د خپل علم يوه ډېره لږه برخه خپلو بندګانو ته ظاهروي چې د هغه په واسطه څه شيان پيژندلی او كشفولی شي. په دې مباركه جمله كې د الله بشپړ علم او د مخلوق د علم او پوهې نيمګړتيا او كمی ثابتيږی. الله تعالی انسان ته د لږ علم په وركولو څه شيان ښكاره كوي: ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ الحَقُّ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾[فصلت: ٥٣].

**ژباړه:** ډېر ژر به موږ دوی ته خپلې نښانې په آفاقو (كايناتو) كې او هم د دوی په نفسونو كې وښيو، ترڅو پورې چې دوی ته دا خبره څرګنده شي چې دغه قرآن په رښتيا سره په حقه دی، آيا دا خبره كافي نه ده چې ستا رب پر هر څه شاهد دی.

خو انسان پر خپل لږعلم مغروريږي او دې حقيقي علم څښتن هېروي. بيا مبارك آيت د الله تعالی عظمت او د ملك پراخي بيانوي او فرمايي: ﴿وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾. د كرسۍ په تفسيركې د علماو او مفسرينودوه مشهور قولونه دي: يو د سلف او د امت د متقدمينو علماوو نظر، چې هغوی د دې مبارك آيت د ظاهر نص پر بنا الله تعالی ته د كرسۍ په وجود معترف دي، خو وايي چې موږ د هغې په حقيقت نه پوهيږو، ځكه په هغې پوهېدنه او د هغې درك زموږ د توان او قدرت څخه بهر دی، خو په دې بشپړ ايمان لرو چې د الله تعالی كرسۍ پر اسمانونو او ځمكې احاطه لري. دمفسرينو دويم نظر د امت د متاخرو علماؤ نظر دی چې هغوی كرسۍ په علم، قدرت او د الله تعالی په سلطې او غلبې سره تفسير كړې ده او هغه پر كايناتو د الله تعالی د بې ساري علم او حاكميت نه كنايه ده. ځينې مفسرين له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كوي، فرمايي: (د الله ﷻ د كرسۍ نه مطلب د هغه علم دی) چې په ټولو شيانو احاطه لري. [1]

---

(١) تفسير الوسيط للسيد طنطاوی، ج١، ص٤٧١

کله چې قرآن کریم ویلي دي چې د الله ﷻ کرسی اسمانونه او ځمکه راګیروي، معنا یې دا ده چې د الله ﷻ کرسی د اسمانونو او ځمکې په پرتله لویه ده، لکه: له ابوذر غفاري رضي الله عنه څخه روایت شوی چې فرمایلي یې دي: له نبي کریم ﷺ څخه مې د کرسی په هکله پوښتنه وکړه. ویې فرمایل: ای ابوذره! اووه اسمانونه او اووه طبقې ځمکه د کرسی په پرتله، په بیدیا کې د یوې لویدلې حلقې څخه زیات نه دي، بیا د الله ﷻ د عرش حیثیت د کرسی په پرتله داسې دی، لکه: په بیدیا کې د هغې حلقې وړوکوالی د بیدیا په پرتله [۲].

اوس بشریت سره له ټولو علمي پرمختګونو یوازې سپوږمۍ ته چې د ځمکې له اقمارو څخه ده او یوازې څو نوري ثانیې له ځمکې څخه فاصله لري، رسیدلی دی. همدارنګه لمر له ځمکې څخه په **۹۳** ملیونه میله فاصلې او واټن سره یوازې اته(۸) نُوري دقیقې او څو ثانیې وخت نیسي. په داسې حال کې چې ستوري، افلاک او کهکشان چې د الهي کایناتو په منځ کې ځای لري په سلګونه نوري کلونه واټن لري. دا چې نور په یوه ثانیه کې درې سوه زره کیلومتره فاصله وهي. دا ټول کشفیات یوازې د دنیا په اسمان کې رامنځته شوي. د الله ﷻ د نورو اسمانونو او ملکوتو په هکله به څه وویلی شو؟!

**بل صفت** چې مبارک آیت د قادر الله ﷻ لپاره ذکر کړی، دا دی چې دا ټول اسمانونه او ځمکه او اسماني ملکوت د الله ﷻ تر ارادې، تدبیر او ادارې لاندې دي چې ساتنه یې د الله ﷻ لپاره هیڅ ډول درونډ والی، ستړیا او ستونزه نه رامنځته کوي او یوازې الله تعالی دی چې دا ټول کاینات او نړۍ یې په خپل مشیت او قیومیت سره ساتلې ده.

دغه مبارک آیت په ﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ﴾ سره پای مومي چې د لویي او عظمت صفتونه یوازې د الله ﷻ لپاره ثابتوي او دا یو منطقي اوښایسته پای دی، ځکه کوم صفتونه چې د الله تعالی لپاره په **آیة الکرسي** کې بیان شوي او اسمانونه او ځمکه سره له دې پراخی او لوی والي، پر دې روښانه او څرګند دلیل دی چې پیداکوونکی، تدبیروونکی او ساتونکی یې باید هغه ذات وي چې ټول د عظمت او لویي صفتونه د هغه ځانګړتیا وي. که څوک د داسې لویي دعوه وکړي الله تعالی یې هلاکوي، لکه: څرنګه چې فرعون یې هلاک او تباه کړ.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په خپلو کې په دې اړه خبرې اوشیرنه وکړي چې انسانانو سره له علمي پرمختګونو او اکتشافاتو بیا هم د الله تعالی ډېر لږ مخلوقات پیژندلي دي.

(۲) صحیح ابن حبان، ج۲، ص۷۶

**د لوست ګټې اولارښوونې**

له دې لوست څخه لاندې ګټې تر لاسه کولای شو.

❖ آیت الکرسي د الهي کتاب ترټولو عظیم آیت دی چې د الله تعالی په اتلسو نومونو مشتمل دی. ټولې کلمې یې پنځوس او په لسو جملو کې خلاصه شوی دی.

❖ آیت الکرسي ټوله بندګي او عبودیت الله تعالی لره ځانګړی کوي او حاکمیت یوازې د دالله ﷻ له شان سره مناسب ګڼي.

❖ د کایناتو او مخلوقاتو د چارو تدبیر او اداره د الله تعالی په لاس کې ده او د هغه علم په ټوله هستۍ او موجوداتو احاطه کوي. په انسان لازمه ده، ترڅو الله تعالی په ټولو وختونو او کارونو کې خپل څارونکی وګڼي.

❖ عظمت او لویي د الله تعالی ځانګړتیا ده. په هره اندازه چې انسان په ځمکه کې لویي وکړي، ستنیدنه یې الله تعالی ته ده، هغه به یې ذلیل کړي او سزا به ورکړي.

❖ د آیة الکرسي لوستل وروسته له فرضي لمونځونو او د ویده کېدو پرمهال ډېر زیات اجر او ثواب لري او په کورونو کې یې لوستل، له کورونو څخه د شیطانانو د شرلو او رټلو لامل ګرځي.




۱. د لاندېنیو کلماتو معنا واضحه کړئ.

﴿الحي، القیوم، سنة، ولا یئوده﴾

۲. د﴿الحي القیوم﴾ جملې مفهوم واضح کړئ؟

۳. د الله تعالی په دې وینا کې ﴿لَهُ مَا فِي السماوات وَمَا فِي الأرض﴾ د جار او مجرور تقدیم په څه دلالت کوي؟

٤. د دې الهي وینا ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ مقصد څه دی؟

٥. له کرسی څخه په دې الهي وینا کې ﴿وسّع کرسیّه السموات والأرض﴾ څه مراد دی؟




د آیة الکرسي د فضیلت او مرتبې په هکله لس کرښې مقاله ولیکئ او په نبوي حدیث یې استدلال وکړئ.

شپږم لوست

# ځمکه د انسان د ګټې لپاره

قال الله تعالی: ﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ وَإِلَيْهِ النُّشُورُ ۝ أَأَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمُ الْأَرْضَ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ ۝ أَمْ أَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ أَنْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا فَسَتَعْلَمُونَ كَيْفَ نَذِيرِ﴾ [الملک: ۱۵-۱۷]

**د ځینو کلمو معناوې**

ذَلُولاً: تابع شوی، آسان شوی، ایل شوی.

مَنَاكِبِهَا: مناکب د منکب جمع ده چې د اوږو په معنا ده، خو دلته ترې د ځمکې اړخونه مراد دي.

الخسف: ښخېدل، پرمخې کېدل، ظاهر په باطن کې او باطن په ظاهر کې ننوتل.

تَمُورُ: په لړزه راځي.

حَاصِبًا: شدید باد چې شګې او چتوي.

**ژباړه**

الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ذات دی چې ستاسو لپاره یې ځمکه ایل(تابع) کړې ده، نو وګرځئ د هغې په اړخونوکې او د الله جَلَّ جَلَالُهُ له روزۍ وخورئ اوبیرته مو د هغه حضورته ورتګ دی. آیا تاسې له دې نه ډاډه یئ چې هغه ذات چې په اسمان کې دی تاسې په ځمکه کې ننباسي او دغه ځمکه په ناڅاپي ډول ولړزیږي.

ایا تاسې له دې څخه بې غمه یئ، هغه ذات چې په اسمان کې دی، پر تاسې تیږې اوروونکی طوفان والوزوي، بیا به تاسې ته څرګنده شي چې زما ډارول څرنګه وي؟

**تفسیر**

د الله جَلَّ جَلَالُهُ د فضل او انعام یوه نمونه پر خپلو بندګانو دا ده چې ځمکه یې هغوی ته غوړولې او نرمه کړې ده، ترڅو د ځمکې دپاسه حرکت وکړي او دګرځېدنې او حرکت له لارې، د آبادیو او ودانیو او یا د کښت او زراعت له لارې ورڅخه ګټه واخلي او د ځمکې له حاصلاتو او زېرمو څخه روزي ترلاسه کړي. له همدې کبله الله تعالی په دغه مبارك آیت کې مسلمانانو ته امرکوي چې په آرامه مه کېنئ د ځمکې په شا او خوا کې وګرځئ او د ځمکې له خزانو څخه د ژوندانه په چارو کې، لکه د خوراك، پوښاك او نورو اړتیاوو پوره کولو په شمول استفاده وکړئ، ترڅو نورو ته اړ نه اوسې. په هره اندازه چې مسلمان له الهي نعمتونو

څخه د ګټې اخيستلو او له ځمکې څخه د پيداوارو او حاصلاتو په لاس ته راوړلو کې سستي او ناراستي وکړي، په همغه کچه به نورو ته اړ او محتاج وي چې دا کار د ذکر شوي آيت نه په ښکاره مخالفت دلالت کوي.

**د مبارك آيت ځينې علمي دلالتونه**

علماوو او مسلمانو ليکوالانو د دې آيت ﴿هُوَ الذي جَعَلَ لَكُمُ الأرض ذَلُولاً...﴾ په هکله مفصلې خبرې کړي دي، چې د قرآن علمي اعجاز ثابتوي. موږ دلته د دې نظرياتو لنډيز د ګرانو زده کوونکو د لازياتې ګټې لپاره بيانوو:

قرآن کريم په ښايسته تعبير د انسان ذهن د الله تعالى قدرت او د هغه زياتو نعمتونو ته متوجه کوي.

په مبارك آيت کې د﴿ذلولاً﴾ صفت يعنې رام او تابع شوى د ځمکې لپاره ذکر شوى، حال دا چې اصلاً دا کلمه د سرکش حيوان لپاره استعمالېږي چې انسان هغه رام کوي، ترڅو د خپلو ګټو په لاس ته راوړلو کې له هغه څخه کار واخلي. علماوو ويلي چې دلته د دې لفظ اطلاق د ځمکې لپاره مقصود دى ځکه همدا ځمکه چې موږ غوړېدلي او آرامه وينو په حقيقت کې د يوه داسې سرکش حيوان په څېر ده چې په ډول، ډول هيبتناکو او حيرانوونکو حرکاتو سره په حرکت کې ده. علمي نظريات او فضايي اکتشافات وايي د ځمکې کُره چې موږ په هغې کې په آرامي اوهوساينې سره ژوند کوو او د هغې له پريمانه نعمتونو څخه ګټه اخلو، په خپل وضعي حرکت سره خپل محور کې د يو ساعت په ترڅ کې د ۱۶۶۶کيلومتر په تيزوالي څرخېږي. همدارنګه په خپل انتقالي حرکت سره په يوه دقيقه کې تقريباً د ۱۸۰۰ کيلو مترو په تيزۍ د لمر په محور څرخېږي، خو سره له دې ټولو حرکتونو او هيبتناکو خوزښتونو او لړزېدو، انسان په هغې کې پرته له دې چې د نا کرارۍ او پرېشانۍ احساس وکړي خپل کارونه سرته رسوي.

**د ځمکې د حرکتونو ګټې او رازونه**

البته دا ډول، ډول حرکتونه د انسان او د ځمکې په مخ د ژوند کولو لپاره ډېر حکمتونه او ګټې لري. چې په ځينو يې پوهېږو او د ځينو نورو له درك او فهم څخه عاجز يو، موږ پوهېږو چې د ځمکې د خپل محور په شاو خوا له حرکت څخه شپه او ورځ پېدا کېږي، د لمر په شاو خوا د ځمکې له حرکت څخه د کال څلور فصلونه منځ ته راځي چې دا ټول د انسان لپاره الله تعالى د قدرتونو او نعمتونو نښې دي، ځکه که دنيا د تل لپاره شپه واى نوټول شيان به د يخنى له امله کنګل کېدل او که دنيا د هميش لپاره ورځ واى بيا به ټول شيان د سختې ګرمۍ له امله سوځېدل.

په همدې ترتيب که چېرې د لمر په شاو خوا کې د ځمکې انتقـالي حرکت نه وای او کـال يـوازې يـو فصل درلودلی، نو د ځمکې پر مخ به ژونـد پـه اوسـنی بڼـه نـاممکن و، خـو د ځمکـې د دريـم حرکـت او د لمر او لمريز نظام د حکمت په هکله لا تر اوسه علم او علمي اکتشافات په څه نه پوهېږي.

## د ځمکې په نسبت د ذلول د کلمې ځينې دلالتونه

د ځمکې په کُرې د (ذلول) د کلمې اطلاق ډېر دلالتونه لـري چـې الله تعـالی هغـه د انـسان لپـاره تابع او نرمه گرځولې ده. د انسان لپاره د ځمکې رام کېدل او د هغـې گټـې مختلـف اړخونـه لـري چې دا لوست يې د تفصيل جوگه نه دی، مثلاً د انـسان لپـاره د ځمکـې مناسـبوالی او د ځمکـې د جـاذبې قـوې لـه حيثـه د هغـې پـرمخ ژونـد تېـرول... او د خـاورينې کـرې هـوارې سـطحې د جوړښت او ترکيب لـه حيثـه... او د جـوي (فـضايي) پـوښ، د هـوا د کثافـت، پـر ځمکـه د ژونـد لپاره د دمحيطي هوا د دقيق ترکيب (٪۲۱ اکسيجن، ٪۷۸ نـايتروجن، ٪۱ څـو نـورو عنـصرونو) لـه حيثه... د دځمکې د حجم او له لمر او سپوږمۍ نه د هغـې د واټـن لـه حيثـه... ځمکـې تـه د لمـر د تودوخې درجې د رسيدو له حيثه... د ځمکې په ترکيب کې د اوبـو او وچـې د نـسبت لـه حيثـه... او ځمکې ته د سپوږمۍ د فاصلې او د سمندرونو د مد اوجـذر د تـوازن لـه حيثـه... او پـه سـلگونو نور داسې توافقات چې دا کره يې د انسان د ژوند لپاره چمتو کـړې ده، ترڅـو انـسان پـرې ژونـد وکړي او د هغـې د مختلفـو ظـاهري او بـاطني زېرمـو او پـانگو څخـه گټـه ترلاسـه کـړي، خـو دا هوسايي او له ډول، ډول نعمتونو څخه استفاده بـه د تـل لپـاره نـه وي، بلکـې دا بـه د يـوې ټـاکلې او معينې مـودې لپـاره وي چـې د دې مـودې لـه تېرېـدو وروسـته انـسان اورمـرو د خپـل خـالق او مـنعم پـه لـوري راگرځـي، (و اليـه النـشور) نـو پـر انـسان لازمـه ده چـې د دې لويـو نعمتونـو پـه وړاندې د الله ﷻ شـکر ادا کـړي. انـسان لـره دا نـه ښـايي چـې د خپـل مـنعم پـالونکي پـه لـور لـه ستنېدو او د هغه له محاسبې څخه غافل او بې پروا واوسي.

## د تابع شوې ځمکې سرکشي او اضطراب

بيا الله تعالی انسان ته خبر ورکوي، دغـه ځمکـه چـې تاسـې وربانـدې پـه آرامـۍ او ډاډينـې ژونـد تېروئ، آيا نه پوهېږئ کله چـې دا د الله تعـالی پـه مـشيت ولړزيـږي او تاسـې پـه خپلـه خېټـه کـې دننه کړي، نو هغه وخت به وپوهېږئ چې زما ويرول څرنگه وي!

بشر چې د دې ايل شوې خاورينې کُرې پرمخ ژونـد تېـروي او د هغـې لـه زيرمـو او خزانـو څخـه گټه اخلي، ښه پوهېږي چې کله د زلزلـو، اورغورځيـدنې، طوفـانونو او نـورو طبيعـي پېښـو پـه اثـر ځمکه يوازې د يوې ثانيې اويا د محدودو دقيقو لپـاره پـه خوزيـدو او اضـطراب شـي او سرکـشي غوره کړي، نو ټول شيان ړنگوي او هغه څه چې انسانانو پرې جوړ کـړي لـه خـاورو سـره يوشـان کوي او انسان سره له ټول کبـر، غـرور، ځـواك او ټکنـالوژۍ بـې وسـه او ناتوانـه او حيـران پـاتې کيږي. همدا وجه ده چې قرآن‌کريم هغه انسان ته، چـې د ځمکـې پـرمخ ژونـد تېـروي او د هغـې

د نعمتونو په وړاندې غفلت او بې پروايي کوي، اخطار ورکوي چې د دې لويو نعمتونو په وړاندې په خپل خالق او پالونکي ايمان راوړي او د دې ټولو نعمتونو په وړاندې شکر ادا کړي، ترڅو د عذاب وړ ونه ګرځي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

د ذکر شويو آيتونو څخه لاندې ګټې لاس ته راځي.

١- الله تعالی ځمکه او څه چې په ځمکه کې دي د انسانانو د ګټې لپاره پيداکړي دي.

٢- که چېرې انسانان د الهي نعمتونو شکرانه پرځای نه کړي، دوی به په دردناک عذاب اخته شي.

٣- انسانانو ته جواز لري چې خپل عقل او فکر د ځمکې د هغو پټو او ښکاره نعمتونو په برسېره کولو کې وکاروي چې د ځمکې په تل کې دي او خپل ژوند پرې نيکمرغه او سوکاله کړي.




١. لاندې کلمې معنا کړئ:

﴿ذَلُولاً، مَنَاكِبِهَا، الخسف، تَمُورُ﴾

٢. د«ذلول» کلمه اصلا د څه شي لپاره استعمالېږي او په مبارک آيت کې د ځمکې لپاره يې استعمال څه مناسبت لري؟ توضيح يې کړئ.

٣. د ځمکې درې ګونې حرکات د هريوه د تيزوالي سره په لنډه توګه شرحه کړئ؟

٤. د انسان د ژوندانه او هوساينې لپاره د ځمکې د کُرې د مناسبوالي پنځه صفتونه د«ذلول» د مبارکې قرآني کلمې په رڼا کې شرحه کړئ.

٥. د دې الهي وينا ﴿فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ﴾ په وړاندې مسلمانان څه مکلفيت لري؟ په لنډه توګه يې واضح کړئ.

٦. په دې مبارک آيت کې د ځمکې کُره د اضطراب او خوځښت په حالت کې د«ذلول» (رام- ايل شوي) د وصف پر عکس څرنګه ستايل شوې ده؟ د«ذلول» مقابله کلمه واضحه کړئ.



د مبارکو آیتونود تفسیر په رڼا کې او د جغرافیې او بیالوژي د علم نه په استفادې سره د ځمکې د حرکتونو او د هغې د ګټو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

# الله تعالی سره مینه د پیغمبر ﷺ په پیروۍ کې ده

قال الله تعالی: ﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۞ قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ﴾
[آل عمران: ۳۱-۳۲]

**ژباړه**

ای پیغمبره! خلکوته ووایه: که چېرې تاسې په رښتیا له الله ﷻ سره مینه لرئ، نو زما د پیروۍ لاره غوره کړئ، الله ﷻ به له تاسې سره مینه وکړي او ستاسې ګناهونه به تاسو ته وبښي، هغه ډېر بښونکی او مهربان دی.

ای پیغمبره! هغو ته ووایه چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ اطاعت وکړئ، بیا که هغوی ستا بلنه ونه منله، نو بیشکه الله له کافرانو سره (چې د هغه او د هغه د رسول ﷺ له پیروۍ څخه انکار کوي) مینه نه کوي.

**د نازلېدلو سبب**

ابن المنذر له حسن بصري رحمه الله څخه روایت کړی، فرمایي: د پیغمبر ﷺ په زمانه کې داسې خلك وو چې ویل به یې: ای محمده ! په الله ﷻ سوګند دی چې موږ خپل پروردګار سره مینه لرو، نو دا الهي وینا نازله شوه: ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ الله فَاتَّبِعُونِي﴾. همدارنګه محمد بن اسحاق له محمد بن جعفر بن الزبیر څخه روایت کړی چې د نجران د نصاراوو استازیو وویل: موږ د الله ﷻ د دوستۍ په خاطر د عیسی بن مریم او د هغه د مور علیهما السلام تعظیم او عبادت کوو، نو الله ﷻ د دې آیتونو په نزول سره خپل آخري پیغمبر ﷺ ته وویل، چې دوی ته ووایه: که چېرې تاسې له الله ﷻ سره مینه لرئ او غواړئ چې الله ﷻ له تاسو سره مینه وکړي، نو زما پیروي وکړئ او د الله ﷻ سره شریک مه نیسئ. په دې ترتیب یې د دوی د دعوه چې د حضرت عیسی علیه السلام تعظیم او تقدیس د الله ﷻ د مینې په خاطر کوي، رد او باطله وګرځوله.[1]

۱- تفسیرالجامع لاحکام القرآن- ج /۵ص۹۲.

**تفسير**

په دې دوه آيتونو کې الله تعالی خپل پيغمبرﷺته امر کړی چې خلکوته لـه الله ﷻ سره د دوستۍ سمه او صحيحه لاره وښيي، ترڅو ټولو انسانانو تـه روښانه شـي چې کـوم خلـک د الله ﷻ د دوستی او مينې دعوه کوي. بايد د دې لارې او کړنـې پـه مطابقت عمل وکړي، ترڅو دوی الله ﷻ ته ګران شي او الله ﷻ له دوی سره مينه ولري.

امام ابن کثير د دې مبارک آيت په تفسير کې ويلي دي «دا مبارک آيت حکم کـوي چې کـه هرڅوک د الله ﷻ د محبت او مينې دعوه کـوي، خـو د محمدي لارې پابنـد نـه وي، هغـه پـه خپله دعوه کې دروغجن دی او د هغه دعوه د قبول وړ نـه ده، تـر هغـه چې د محمدي شـريعت او نبوي دين د ټولو وينااوو او کړنـو پيـروي او اطاعـت ونـه کـړي»[1] د الله ﷻ او د هغـه د رسـول د مينې او محبت دعوه د هغـوی د اوامـرو نـه د سر غړونـې پـه صـورت کـې د قبـول وړ نـه شـي ګرځېدلی، لکه: څرنګه چې رسـول اللهﷺ پـه صـحيح حـديث کـې فرمـايلي دي: «مَنْ عَمِلَ عَمَلاً لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ»[2] يعنې که څوک داسې عمل ترسره کـړي چـې زمـا د امـر (زمـا د ديـن) پر بنسټ ولاړ نه وي، هغه مردود دی.

په دې هکله په يو عربي شعر کې څومره ښايسته ويل شوي دي:

تَعصِي الإِلهَ وَأَنْتَ تُظَهِرُ حُبَّهُ   هَذَا لَعَمْرِىْ فِي الْقِياَسَ بَدِيْعُ

لَوْ كَانَ حُبُّكَ صَادِقاً لأَطَعْتُهُ   إِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ يُحِبُّ مُطِيْعُ

يعنې: د الله د محبت او مينې دعـوه کـوې، پـه داسـې حـال کـې چـې تـه د هغـه پـه معصيت او ګناه اخته يې ! قسم دی چې دا کـار د عقـل او قيـاس خـلاف دی. کـه ستا دوسـتي رښـتينې وای نو د هغه اطاعت به دې کولای، ځکه دوست د خپل دوست او محبوب اطاعت کوي.

أزهـري د دې آيـت پـه تفـسير کې وايـي: د الله ﷻ او د هغـه د رسـول سـره د بنـده مينـه د هغـوی داوامـرو اطاعـت او فرمـانبرداري ده او د خـدای تعـالی مينـه لـه بنـده سـره، بنـده تـه د الله تعـالی مغفرت او ښښنه ده.[3]

**د الله ﷻ د مينې نښې**

په دې مبارک آيت کې ليدل کيږي چې د الله ﷻ سره د بنـده د مينـې او محبـت لـومړنۍ نـښه د الله د رسـولﷺ پيـروي او د هغـه د امـر منـل دي چـې د الله ﷻ د مينـې او د ګنـاهونو د بـښنې

1- دابن کثير تفسير - ج۳/ص/۴۶.
2-متفق عليه- البخاري – ۲۵۷۱ المسلم- ۳۳۲۸
3- د قرطبي تفسيرج- ۵ - ص - ۹۲

لامل گرځي. الله تعالی ډېر ښښونکی او پرهغه چا ډېرمهربانه دی چې د پېغمبرﷺ د پیروی او اوامرو د منني له لارې الله تعالی ته نژدېوالی غواړي.

بيا هم الله تعالی پر خپل پېغمبرﷺ د امر په صيغه ټينگار کوي چې خلك د اللهﷻ او د هغه د درسولﷺ پیروی او د امرمننې ته وهڅوي ﴿قُلْ أَطِيعُواْ اللهَ وَالرَّسُولَ﴾، ترڅو په ټولو حالاتو، اوامرو او نواهيو کې د اللهﷻ او د هغه د رسولﷺ پيروي او اطاعت وکړي.که څوك د اللهﷻ د مينې او دوستی دعوه کوي او بيا د خدایﷻ د رسولﷺ پيروي نه کوي، په حقيقت کې هغه دروغجن دی. مفسرين وايي: د اللهﷻ او د هغه د رسولﷺ اطاعت يوازې يو اطاعت دی او هيڅكله جدايي نه مني. د پېغمبرﷺ پيروي د اللهﷻ پيروي ده، لكه: چې الله تعالی په بل آيت کې فرمايي: ﴿مَّنْ يُطِعِ الرسول فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ﴾ [النساء: ۸۰] يعنې: څوك چې د الله د رسول محمدﷺ پيروي كوي، په حقيقت کې يې د اللهﷻ پيروي کړې ده.

سهل بن عبدالله فرمايي: له الله تعالی سره د مينې نښه د قرآن سره مينه ده، د قرآن سره د مينې نښه د پېغمبرﷺ سره مينه ده، دپېغمبرﷺ سره د مينې نښه د هغه د طريقو او سنتوپيروي ده او د دپېغمبرﷺ د سنتوسره مينه د آخرت سره مينه ده... [۱]

لكه څرنگه چې د قرآن او سنتو له نصوصو نه څرگنديږي د اللهﷻ او د هغه د رسولﷺ سره مينه كول د ايمان د غوښتنو او اساساتو څخه گڼل كېږي، د اللهﷻ او د هغه د رسولﷺ سره مينه د نيكو اعمالو د ترسره كولو باعث گرځي او انسان دې ته هڅوې، ترڅو د اللهﷻ رضا د حاصلولو لپاره نيك، غوره او وړ اعمال ترسره كړي.

له دې مبارك آيت څخه په څرگند ډول جوتيږي چې له اللهﷻ سره د مينې لرلو له شروطو څخه د پېغمبرﷺ متابعت او د هغه پيروي ده. د پېغمبرﷺ پيروي په دې کې ده چې مسلمان د هغهﷺ د سنتو او طريقو متابعت او فرمانبرداري وكړي. د پېغمبرﷺ سنت د هغه د قول فعل اخلاقو او د ژوند د طريقو څخه عبارت دي. په دې اساس كه څوك غواړي چې د اللهﷻ سره مينه او محبت ولري او اللهﷻ له ده سره مينه ولري، نو بايد د پېغمبرﷺ او د هغه د سنتو اطاعت او فرمانبرداري وكړي. په يوه حديث شريف کې له رسولﷺ نه روايت دی چې فرمايي:

---

۱- تفسيرالقرطبي ج۵ ص ۹۲

«عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ مِنْ بَعْدِي»[1] يعنې پرتاسو لازمه ده چې زما د سنت او له ما وروسته د راتلونکو هدايت شويو راشدينو خلفاوو د سنت او طريقو متابعت وکړئ.

بايد و پوهيږو چې د قرآن له نظره د الله ﷻ اود هغه د پيغمبر ﷺ د محبت دعوا يوازې شعار او ژبنۍ دعوه نه ده، بلکې د ژوند په فردي او ټولنيزو چارو کې د پيغمبر ﷺ د تګلارې، منهج او نظام خپلول او عملي کول دي.

### د پيغمبر ﷺ له اطاعته د نافرمانۍ پايلې

الله تعالی د دويم آيت پای کې په ډېر تند خطاب سره په رسول الله ﷺ باندې د ايمان دسرغړوونکو او د هغه له اطاعت او پيروي څخه د مخ اړوونکو د پای اوعاقبت په هکله داسې فرمايي:﴿ فإن تَوَلَّوْاْ فَإِنَّ الله لاَ يُحِبُّ الكافرين﴾ يعنې: که چيرې هغوی مخ واړوي، نو الله تعالی کافران نه خوښوي.

امام قرطبي ددې آيت په تفسير کې داسې فرمايي: د ﴿فإن تَوَلَّوْاْ﴾ شرطيه جمله ده او د دې جملې موقعيت ته په کتو سره دهغې معنا داسې ده:که چېرې هغوی د کفر په حالت کې سرغړونه وکړي او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ له پيروي نه اعراض وکړي ﴿فَإِنَّ الله لاَ يُحِبُّ الكافرين﴾؛ نو الله کافران نه خوښوي، يعنې الله تعالی د هغوی له کړنو څخه ناراضه وي او هغوی ته ببښنه نه کوي.

دغو مبارکو آيتونو په خپلو لوړو او ځلاندو لارښوونو سره د مسلمان د ژوند منهج او کړنلاره بيان کړي ده چې پر هغو باندې دعمل کولو پايلې، په اخلاص سره د الله ﷻ عبادت، له عذاب څخه خلاصون د اجر او ثواب حاصلول د نيکو اعمالو د ترسره کولو لپاره هڅه او هاند او د الله تعالی د رضا اومحبت حاصلول دي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

د ذکر شويو آيتونو ځينې ګټې او لارښوونې دا دي:

❖له الله تعالی سره مينه او محبت واجب او د ايمان له لوازمو او مقتضياتو څخه ګڼل کيږي. لکه: څرنګه چې د الله پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: "لا يؤمن أحدكم حتى يكون الله ورسوله

---

1-الأوسط لإبن المنذر، حديث ١٢٨، والسنة للمروزى ، حديث٥٧، وشرح معاني الآثار للطحاوى ،حديث ٣١١

أحب إليه مما سواهما" يعنې: هېڅ يو له تاسو نه مؤمن نه دی، ترڅو الله او پېغمبرﷺ یې له نورو ټولو نه ورته ګران نه وي.

❖ د الله ﷻ مينه د بنده لپاره هغه اصلي موخه اوهدف دی چې د علم او پوهې ښښتنان په ژوندانه کې د هغه لپاره هلې ځلې کوي.

❖ د مؤمن بنده لپاره د الله ﷻ د مينې او محبت ترلاسه کولو لاره د الله ﷻ په رسول حضرت محمدﷺ باندې ايمان راوړل او په آسانۍ او سختۍ کې د هغه د شريعت منل او پيروي ده.

❖ د الله ﷻ او د هغه د رسول د مينې او محبت دعوه کول په داسې حال کې چې دعوه کوونکی د الله ﷻ او د هغه د رسول له اوامرو او نواهيو څخه مخالفت او سرغړونه کوي، باطله ده او د دې دعوې ښښتن به يقينا له زيان او تاوان سره مخ وي.

❖ د الله تعالی او د هغه د رسولﷺ د ريښتينې مينې او محبت غوره نمونه دا ده چې د اسلام سپيڅلي دين په کامله بڼه نافذ شي، يعنې د قرآن او سنتو احکام او ارزښتونه د خلکو د ژوند په ټولو فردي او ټولنيزو اړخونو کې په عملي توګه پلي شي.




۱. دغه مبارک آيت د نصاراوو دعوه د حضرت عيسیؑ د تعظيم او لمانځنې په باره کې څرنګه رد کړې ده؟ واضح يې کړئ.

۲. ابن کثير رحمه الله د دې آيت ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ الله فاتبعوني﴾ په تفسير کې څه فرمايلي دي؟ په لنډه توګه يې شرحه کړئ.

۳. د الله ﷻ د مينې او محبت د دعوه تر ټولو غوره نښه په څه کې ده؟

٤. ددې مبارکې جملې ﴿فاتبعوني﴾، په رڼاکې د پېغمبرﷺ له محبته څه مراد دی؟ واضح يې کړئ.

۵. ددې لوست مبارک آيتونه مسلمانان کومو لارښوونو او آدابو ته متوجه کوي؟




د لوست د موضوع په رڼا کې د الله ﷻ سره د مينې او د پېغمبرﷺ د پيروۍ په هکله دوه مخه مقاله وليکئ.

اتم لوست

# اسلام بشپړ او هراړخيز دين دى

قال الله تعالى: ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ۝ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا﴾ [النساء: ۶۰-۶۱]

## د ځينو کلمو معناوې

يَزْعُمُونَ: گومان کوي، دروغجنه دعوه کوي.

الطَّاغُوتِ: هر هغه څه چې پرته له الله تعالى يې عبادت او لمانځنه کيږي او حَکم وټاکلى شي.

يَصُدُّونَ: مخ اړوي، او نور منع کوي.

## ژباړه

اى پيغمبره! آيا تا هغو خلکو ته نه دي کتلي چې گمان کوي چې موږ ايمان راوړى دى په هغه کتاب چې تاته راغلى دى او په هغو کتابونو چې له تا څخه مخکې نازل شوي دي. هغوى غواړي چې خپلې چارې د فيصلې لپاره د طاغوت لوري ته يوسي. حال دا دى چې هغو ته له طاغوت نه د منکريدو حکم شوى ؤ، شيطان غواړي چې هغو گمراه کړي او د سمې لارې نه يې ډېر لرې وباسي اوکله چې هغوى ته وويل شي چې د الله ﷻ نازل شوي کلام او رسول ﷺ ته راشئ، نو ته وينې چې منافقان له تا څخه مخ اړوي په مخ اړولو سره.

## د نازليدلو سبب

مفسرينو ددې مبارک آيت ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الذين يَزْعُمُونَ...﴾ د نزول په هکله مشابه روايتونه نقل کړي چې يو سبب يې دا دى: ثعلبي او ابن ابو حاتم له ابن عباس رضى الله عنهما څخه روايت کړى د بشر په نامه يو تن منافق له يوه يهودي سره دعوه درلوده. يهودي وغوښتل چې پيغمبر ﷺ ته د فيصلې لپاره مراجعه وکړي، خو منافق ټينگار کاوه چې کعب بن اشرف ته چې د يهوديانو مشر ؤ، د پريکړې لپاره ولاړشي. په پايله کې د الله پيغمبر ﷺ ته ورغلل او د الله پيغمبر ﷺ د جنجالي قضيې له اوريدلو وروسته د يهودى په گټه حکم وکړ، خو (منافق بشر) د

الله د پیغمبرﷺ پرېکړه ونه منله او له یهودي سره د حضرت عمرؓ حضور ته ولاړل، ترڅو هغه د دوی ترمنځ حکم وکړي. عمر بن الخطابؓ د موضوع له اوریدلو وروسته دوی ته وویل، تاسو دلته ایسار شئ. زه ستاسو ترمنځ فیصله کوم. حضرت عمر بن الخطابؓ کور ته ننوت، خپله توره یې راواخیسته راووت او د منافق سر یې غوڅ او اعلان یې وکړ، دا ده زما فیصله، د هغه چا په هکله چې د الله ﷻ او د هغه د پیغمبرﷺ په حکم او فیصله نه راضي کېږي. دا مبارك آیت په همدې وخت کې په همدې اړوند نازل شو. پیغمبرﷺ حضرت عمر بن الخطابؓ ته «فاروق» یعنې د حق او باطل بیلوونکي لقب ورکړ.

په بل روایت کې د دې مبارك آیت په شان نزول کې داسې راغلي چې دا متبرکه آیت د منافقینو د یو ټولي په باره کې نازل شوی دی چې هغوی به خپلې فیصلې د جاهلیت د رسمونو پر بنسټ کولې.[1]

د آیت د نزول سبب چې هرڅه وي مگر د قاعدې پر بنسټ (العبرة بعموم اللفظ لا بخصوص السبب) یعنې د قرآن عام لفظ معتبر دی نه د آیت د نزول ځانگړی سبب، د دې آیت نص د هغو کسانو عمل ردوي چې په خپلو فیصلو کې د اسلام له احکاموڅخه تېری کوي او خپلې قضیې او شخړې د شیطان یا باطلو او غیر اسلامي قوانینو پر بنسټ کوي.

**تفسیر**

امام ابن کثیر رحمه الله د ذکر شوي آیت په تفسیر کې ویلي دي، الله تعالی پر هغه چا چې په الله او پیغمبرﷺ او په پخوانیو انبیاوو د ایمان دعوه کوي، خو د دعوو او جگړو حل او فصل د الله د کتاب او د رسولﷺ له سنتو پرته د نورو په فیصلې او قضا باندې راضي کېږي او هغوته مخه کوي، شدیداً رد کړی، هغه یې باطل او د طاغوت فیصله بللې ده.

په دې مبارك آیت کې د منافقانو له ښو څخه یوه لویه او څرگنده نښه ذکر شوې، ترڅو یې مؤمنان وپېژني او له هغې څخه ډډه وکړي. د منافقانو دا لویه نښه ده چې هغوی په اسلام او په هغه څه چې پر پیغمبرﷺ باندې نازل شوي دي، د ایمان دعوه کوي، خو هر کله چې د الله ﷻ او رسولﷺ حکم او فیصلې ته وغوښتل شي، مخ اړوي او سرغړونه کوي او په دې توگه خپل منافقت او دروغ ښکاره کوي.

**فعالیت**

ولې یهودي ونه غوښتل چې د فیصلې لپاره کعب بن اشرف یهودي ته ولاړشي، بلکې د الله د رسول حکمیت یې غوره وباله؟ زده کوونکي دې د خپل ښاغلي ښوونکي په لار ښوونه په دې هکله بحث او څېړنه وکړي.

---

۱- تفسیر ابن کثیر ج ۱۳۸/۴

**د الله او د رسول حاکمیت**

حاکمیت او فیصله یوازې الله ﷻ لره ده او د الله او پیغمبر د حکمونو منل د ایمان او اسلام شرط دی، لکه: څرنګه چې الله ﷻ تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [النساء: ۵۹] یعنې: ای مؤمنانو! د الله اطاعت وکړئ او د رسول اطاعت وکړئ او د هغو کسانو پیروي وکړئ چې پر تاسې آمران دي. که ستاسې ترمنځ په کومه چاره کې شخړه پېښه شي، نو هغه د الله ﷻ او رسول ﷺ لوري ته محوله کړئ، که تاسې په رښتیا سره پرالله ﷻ او د آخرت په ورځ ایمان لرئ.

د الله او پېغمبر ﷺ اطاعت او د امر منه واجب او قطعي ده، نو کوم کسان چې د ایمان دعوه کوي باید په خپلو ټولو چاروکې د الله ﷻ د حکم او د الله ﷻ د پېغمبر ﷺ د حکم پیروي وکړي، څکه نه یوازې دا چې د الله د حکم او د پېغمبر ﷺ د حکم پیروي واجبه ده، بلکې که کوم مؤمن د الله ﷻ د رسول ﷺ په فیصله د زړه له کومې راضي او خوشحاله نشي او په بشپړه توګه ورته غاړه کېنږدي، د ایمان په دعوه کې رېښتنی نه دی، لکه: چې قرآن کریم په څرګنده توګه په دې هکله فرمایي: ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ [النساء: ۶۵] یعنې: نه ده داسې ای محمده، ستا په رب قسم چې دوی هېڅکله مؤمنان کېدای نشي، ترڅو چې تا په خپل منځي شخړو کې حَکم او فیصله کوونکی ونه مني بیا چې ته څه فیصله وکړې پر هغې باندې په خپلو زړونوکې څه تنګي هم احساس نه کړي، بلکې سر تر پایه یې ومني.

**اسلام تجزیه نه مني**

د پورتني مبارک آیت او د قرآن او سنتو د نورو نصوصو پربنسټ، فیصله باید د الهي احکامو پر بنسټ وي. دا حکم ټولو قضیو او شخړو ته که وړې وي او که غټې شاملېږي او هېڅکله تجزیه او استثنا نه قبلوي.

اسلام د الله ﷻ کامل او پوره دین او د ټولو ادیانو بشپړوونکی دی. الله تعالی د اسلام دین د وروستني دین په توګه د بشریت لپاره غوره کړی دی. هرڅوک چې له اسلام څخه پرته بل

دین قبلوي هېڅکله به ورڅخه ونه منل شي، لکه: څرنګه چې الله تعالی فرمايلي دي: ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ [آل عمران: ۱۹]: د الله په وړاندې دين همدا اسلام دی.

په بل آيت کې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [آل عمران: ۸۵]

يعنې: له اسلام پرته چې هر څوک کوم بل دين غوره کړي هيڅکله به ورڅخه قبول نه شي او په آخرت کې به هغه ناکام او زيانمن وي.

اسلام داسې دين دی چې ثابت او ښکاره بنسټونه او قواعد لري. بايد په بشپړه او کامله توګه عملي شي، ټولې لارښوونې او احکام يې ومنل شي، په ټولنه کې تطبيق او مثبتې او ګټورې پايلې يې معلومې شي. هېڅوک حق نه لري چې اسلام تجزيه کړي يا په بله وينا يو حکم يې ومني او بل يې پرېږدي. الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً﴾ [البقرة: ۲۰۸] يعنې اى مؤمنانو! تاسې په بشپړ ډول په اسلام کې ننو ځئ او په بل آيت کې الله تعالی د هغو کسانو مذمت او بدي بيانوي څوک چې ځينې احکام قبلوي او د ځينو نورو له منلو نه سرغړونه کوي، داسې فرمايي: ﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَاءُ مَنْ يَفْعَلُ ذَلِكَ مِنْكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أَشَدِّ الْعَذَابِ...﴾ [البقرة: ۸۵] يعنې: آيا تاسې ځينې کتاب منئ او له ځينې نورو څخه بيا انکار کوئ ؟ نو د هغو خلکو جزا چې دا رنګه کارونه کوي پرته له دې بل څه نه ده چې په دنياوي ژوند کې به له رسوايئ سره مخ وي او د قيامت په ورځ به د خورا سخت عذاب په لور وروستل شي.

د اسلام د سپيڅلي دين د احکامو تجزيه او د هغه د ارزښتونو او تعليماتو نيمګړی تطبيق په فردي او ټولنيز ژوند کې مطلوبې او ټول اړخيزې پايلې نه ورکوي او د اسلام د کامل، شامل او هر اړخيزه دين له طبيعت سره په تضاد کې دی، ځکه اسلامي احکام او ارزښتونه د يو ماشين او يا لويې کارخانې د پرزو په څېر يو تربله تړاو لري. که چېرې هدف دا وي چې دغه نظام په سمه توګه کار وکړي او د بشر د دنيوي او اخروي نيکمرغيو مطلوبه نتايج ورڅخه ترلاسه شي لازمه ده چې دغه نظام د ژوند په ټولو اړخونو، لکه: د اعتقاداتو، عباداتو، معاملاتو، اخلاقو، قضا، سياست، اقتصاد او نورو برخو کې فعال او عملي شي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

د لوست ځينې ګټې او لارښوونې په لاندې ډول دي.

❖حکمیت او فیصله د الله ﷻ له کتاب او د رسول الله ﷺ له سنتو پرته حرامه ده او جواز نه‌لري.

❖مسلمان مکلف دی، ترڅو د طاغوت په وړاندې چې تر هر نوم او نښان لاندې وي، تسلیم نشي او هغه رد کړي.

❖پر مسلمان لازمه ده چې د شخړو او دعوو د حل لپاره د الله ﷻ کتاب او د رسول ﷺ سنتو ته مراجعه وکړي او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ له حکم څخه د زړه له کومې رضایت څرګند کړي.

❖اسلام هر اړخیز دین دی، تجزیه نه مني. د اسلام احکام اوقوانین باید په هر اړخیزه توګه د مسلمانانو په فردي او ټولنیز ژوندانه کې عملي شي، ترڅو هغه پایلې چې الله تعالی یې د بشریت د اصلاح او نیکمرغۍ لپاره اراده کړې، ترلاسه شي.

❖د اسلام د ځینو احکامو منل او د ځینو پرېښودل په خپل ذات کې له اسلام سره دښمني او مخالفت دی، لکه چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د مسلمانانو لومړني خلیفه د لمانځه او زکات ترمنځ د توپیر کوونکو پر ضد د جنګ اعلان وکړ چې د ردت د جنګونو په نامه یادیږي.




١. د«طاغوت» معنا او مفهوم بیان کړئ.

٢. ولې هغه یهودي ونه غوښتل د فیصلې لپاره کعب بن اشرف ته، چې د یهودیانو لوی مشر و، مراجعه وکړي؟

٣. د الله ﷻ او د الله د پیغمبر ﷺ له حکم پرته د بل چا د حکم منلو ته څه ویل کېږي او څه حکم لري؟

٤. مبارکو آیتونو د منافقانو یو اساسي او بنسټیز صفت بیان کړی، دا اساسي صفت کوم دی؟ واضح یې کړئ.

٥. څوک چې یوازې د الله ﷻ حکم قبول کړي او د پیغمبر ﷺ په حکم عمل نه کوي څه حکم لري؟ په قرآني آیتونو او احادیثو استدلال وکړئ.

٦. که څوک د اسلام په ځینو احکامو عمل وکړي او ځینې نور قصداً پرېږدي، څه حکم لري؟



د قرآن اونبوي احاديثو په رڼا کې د اسلامي احکامو د تجزيې د منفي نتـايجو پـه هکلـه يـوه مقالـه وليکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

# لمونځ تل پاتې اونه شلیدونکې فریضه ده

**قال الله تعالی:** ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُبِينًا ۞ وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِنْ وَرَائِكُمْ وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرَى لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ كَانَ بِكُمْ أَذًى مِنْ مَطَرٍ أَوْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَنْ تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا ۞ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِكُمْ فَإِذَا اطْمَأْنَنْتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا ۞ وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ [النساء: ۱۰۱-۱۰۴]

**د ځینو کلمو معناوې**

إِذَا ضَرَبْتُمْ: کله چې مو سفر وکړ.

جُنَاحٌ: گناه، وبال

أَن يَفْتِنَكُمُ: که چېرې تاسوته ضرر او آزار ورسوي.

كِتَابًا مَوْقُوتًا: د وخت په پابندۍ فرض شوی دی.

وَلَا تَهِنُوا: سستي او اتنبلي مه کوئ.

يَأْلَمُونَ: دردمن کیږي، غم وررسیږي (کړاو گالي)

**ژباړه**

او کله چې تاسو په سفر ووتلئ، نو څه باك نشته که په لمانځه کې لنډوالی وکړئ (په تېره بیا) کله چې له تاسې سره دا ډار وي چې کافران به مو وځوروي، بې له شکه چې کافران ستاسې ښکاره دښمنان دي.

او ای پیغمبره! کله چې ته د مسلمانانو په منځ کې یې او (د جنگ په حالت کې) له هغو سره په لمانځه ولاړ یې نو (په کار ده چې) له هغو څخه یوه ډله دې له تاسره ودرېږي او وسله دې په لاس کې واخلي، بیا چې کله هغوی سجده وکړه، نو وروسته دې شي او هغه بله ډله دې

راشي، چې (لا تراوسه يې) لمونځ نه دی کړی اوله تاسره دې لمونځ وکړي او هغه دې هم تيار او په وسله سنباله اوسي، ځکه کافران د دې (څارنه کوي) چې که تاسې له خپلو وسلو او خپلو تجهيزاتو نه لږ شان غافله شئ هغوی به پرتاسې يو نا څاپي يرغل وکړي. البته که وو پر تاسې ضرر له باران څخه يا ناروغان اوسئ، نو په وسلې ايښودلو کې څه باك نشته، خو بيا هم څارنه وکړئ، بې له شکه الله ﷻ کافرانو ته رسوا کوونکی عذاب تيار کړی دی.

بيا کله چې له لمانځه څخه وزګار شئ، نو په ولاړې او ناستې او ملاستې په هر حالت کې الله ﷻ يادوئ. او کله چې ډاډه شئ، نو عادي لمونځ اداء کړئ، بې شکه چې لمونځ پرمؤمنانو په ټاکلو وختونو کې فرض کړای شوی دی.

د دښمن د دلو په تعقيبولو کې سستي مه کوئ، که تاسو کړاو ګالئ، نو ستاسو په شان هغوی هم کړاو ګالي، خو تاسې له الله ﷻ نه د هغه څه هيله من ياست چې هغوي يې هيله من نه دي. الله ﷻ پرهر څه پوهيږي او الله ﷻ د پوهې او حکمت خاوند دی.

### تفسير

### په اسلام کې د لمانځه مقام او منزلت

لمونځ (صلاة) د دعا په معنا دی اوپه شريعت کې د الله تعالی په دربار کې هغه ځانګړی عبادت دی چې په قيام، رکوع، سجده او مخصوصو دعاګانومشتمل دی. لمونځ د اسلام دويم رکن دی. الله تعالی په خپلې دې وينا سره چې فرمايي: ﴿الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ...﴾ [البقرة: ٣] د لمونځ ادا کول ورروسته له ايمان بالغيب څخه د متقي او پرهيزګارو بندګانو دويم صفت ښودلی دی او د هغوی مدحه او ستاينه يې کړې ده. لمونځ هغه فريضه ده چې د مؤمن اړيکې له الله تعالی سره په ورځ کې پنځه ځله ټينګوي. په قرآن او حديث کې د لمانځه د اداکولو يادونه د اقامت په تعبير سره د دغې فريضې په دوام او ثبات دلالت کوي، په دې معنا چې دغه فريضه بايد هېڅکله هم ترك نه شي.

له دې امله قرآن عظيم الشأن حتی د جنګ او جګړې پر مهال هم د دې فريضې په اداکولو ټينګار کړی دی او د وېرې د لمانځه د اداکولو طريقه يې بيان کړې ده، ځکه چې لمونځ د مؤمن لپاره د جګړې پر مهال د ارزښتناکې وسلې په څېر دی، ځکه به د پيغمبر ﷺ ملګري او ريښتني مؤمنان په دغې وسلې سمبال د جګړې ډګر ته ننوتل او پر خپلو دښمنانو به بريالي کېدل.

په دې مبارکو آيتونو کې د سفر احکام، د لمانځه د لنډوالي مشروعيت، د ډار او خطر په وخت کې د لمانځه د ادا کولو څرنګوالی، د لمانځه د وختونو فرضيت او نور احکام بيان شوي دي چې په دغو ټولو حالاتو کې د الله ﷻ په عبادت د مؤمنانو پابندي، د لمانځه ادا کول، وخت پېژندنه، له وخت څخه ښه ګټه اخيستنه او په کارونو کې د مسلمانانو د زيار او جديت څرګندونه کوي.

کوم احکام چې علماوو له دې آيتونو څخه را ايستلي هغه دا دي.

١. جمهور علماء په دې آند دي چې مبارك آيت په سفر کې د لمانځه د لنډون(قصر) مشروعيت ثابت کړی دی او له لنډون څخه مراد د رکعتونو په کميت او عدد کې دی، يعنې څلور رکعتي فرض لمونځ دوه رکعته ادا کيږي، توپير نه کوي چې د ډار او خطر سفر وي او که مسافر د امن او آرامی په حالت کې وي.

٢. د قصر د لمانځه د مودې په هکله علماء مختلفې ويناوې لري، د حنفي مذهب مطابق دا موده د درې ورځو او درې شپو عادي پلی تګ ټاکل شوی دی.

٣. دسفر د ډولونو په هکله هم د علماوو رايې مختلفې دي. په داسې حال کې چې ټول علماء د جهاد، حج، عمرې او نيکو مقصدونو او د صله رحمی او خپلولی پالللو په سفرونو کې متفق دي. جمهور علماء په دې نظر دي چې په مباح سفر، لکه: تجارت او داسې نورو کې د لمانځه لنډون جواز لري، خو د معصيت او ګناه په سفر، لکه: بغاوت، لارې شکول او داسې نورو کې جواز نه لري.

٤. د اقامت او اوسيدنې د مودې په هکله له پنځلسو ورځو څخه د زياتو اوسيدلو نيت اقامت ګڼل کيږي، نو لمونځ به پوره کوي خو د پنځلسو ورځو څخه کم د قصر موجب دی.

٥. په دې مبارك آيت ﴿إِنَّ الصلاة كَانَتْ عَلَى المؤمنين كِتَاباً مَّوْقُوتاً﴾ کې د لمانځه فرضيت په بلاغي او بياني ډېرو تاکيداتو سره راغلی، ترڅو مسلمانان په هر راز حالاتو او شرطونو کې د دې فريضې له ادا کولو څخه غفلت او تنبلي ونه کړي. د لمانځه ادا کول پر مسلمانانو په ټاکلو وختونو کې فرض شوي چې بايد د اقامت، سفر، امن، خطر او په هرحالت کې ادا شي.

٦. په مبارکو آيتونوکې راغلي دي چې مؤمنانو ته نه ښايي د خپلو دښمنانو په وړاندې سستي او بيوسي ښکاره کړي، ځکه دښمنان يې تل د زيان او له منځه وړلو په تکل کې دي، ځکه د عقل په حکم او د سنتو مطابق د حق او باطل ترمنځ مقابله او مدافعه، لکه: څرنګه چې مؤمنان د ستونزو، رنځونو او دردونو سره مخ کېږي، دښمنان يې هم د دې رنځونو او دردونو

څخه خلاصون نه لري، بلکې د مومنانو په څېر دوی هم له زیاتو ستونزو، رنځونو او دردونو سره مخ کېږي، خو د دې کړاوونو په وړاندې مومنان د الله ﷻ رضا، د دین لوړوالی او اخروي اجر حاصلوي، په داسې حال کې چې دښمنان یې پرته له دې چې د نفس او شیطاني غوښتنې یې تر سره شي او د آخرت له زیان او نقصان سره مخامخ شي، بل څه نه شي حاصلولی.

### د وېرې(خوف) لمونځ او د ادا کولو کیفیت یې

په ذکر شویو مبارکو آیتونو کې د وېرې د لمانځه مشروعیت او کیفیت په داسې توګه بیان شوی دی چې هرکله مسلمانان د جنګ یا خطر په حالت کې وي، نو الله تعالی خپل پیغمبر ته امر کړی چې صحابه په دوو ډلو وویشي. لومړۍ ډله له وسلې سره د اسلام له پیغمبر ﷺ سره د جماعت لمونځ پیل او دویمه ډله دې د حفاظت لپاره د دښمن په وړاندې څارنه او نظارت وکړي. کله چې یو رکعت لمونځ ادا شو، لمونځ کوونکې ډله به د ساتونکې ډلې ځای ته ولاړه شي او ساتونکې ډله به د الله په پیغمبر(د جماعت کوونکو امام) پسې له خپلې وسلې سره ودرېږي او دویم رکعت به ادا کړي د امام له سلام ګرځولو څخه وروسته به دا ډله پرته له سلام ګرځولو د ساتنې او حفاظت ځای ته ولاړه شي او لومړۍ ډله به راشي، پاتې یو رکعت به د لاحق په توګه ادا کړي بیا دویمه ډله به راوګرځي او پاتې یو رکعت به د مسبوق په توګه له قرائت سره ادا کړي او د تشهد او درود له ویلو څخه وروسته به سلام وګرځوي. البته دا ذکر شوې طریقه د احنافو له مذهب سره سمون لري او نورو مذهبونو په لږ توپیر سره د وېرې د لمانځه ترتیب بیان کړی دی چې تفصیل یې د فقهې په کتابونو کې ذکر شوی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې د وېرې د لمانځه د ادا کولو طریقه د ځینو نورو مذهبونو له نظره وڅېړي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

دا مبارک آیتونه ډېرې لارښوونې لري چې ځینې یې په دې ډول دي:

❖ الله تعالی مسلمانانو ته د جماعت د لمانځه په ادا کولو امر کړی آن تردې چې که هغوی له دښمن سره د جګړې د تیارۍ په حالت کې هم وي.

❖لمونځ د بنده او الله ﷻ ترمنځ اړیکه ده. له همدې امله اسلام خپل پیروان د جنګ په میدان کې هم د لمانځه په ادا کولو ملزم کړي دي، ځکه هرکله چې د مجاهد او الله ﷻ ترمنځ رابطه او اړیکې ټینګې شي، الله ﷻ له هغه سره مرسته کوي او برى ورښيي.

❖په داسې حال کې چې د اسلام مقدس دین د بنده او پروردګار ترمنځ د اړیکو په ساتلو امر کړی، په عین حال کې يې د خوف د لمانځه پر مهال په خارنه، هر ډول وسله اخیستنه، پاملرنه، احتیاط او چمتو والي هم ټینګار کړی دی.

❖اسلام خپل پیروان په روحي، عقلي او جسمي روزنه پالي، که هغوی د دې پالنې پربنسټ عمل وکړي، نو په دنیا کې به کامیابي، برلاسي او نیکمرغي او په آخرت کې لوړې درجې تر لاسه کړي.

❖لمونځ په ټولو ارکانو، شروطو او آدابو کې د سپیڅلتیا، نظم، وخت پیژندنې، پابندۍ او جدیت مظهر دی.




١. د لاندینیو کلمو معناوې واضحې کړئ:
(إِذَا ضَرَبْتُمْ– أَن يَفْتِنَكُمُ– كِتَابًا مَوْقُوتًا– وَلَا تَهِنُوا– يَأْلَمُونَ)

٢. د سفر هغه موده چې د لمانځه د لنډ ادا کولو موجب ګرځي د احنافو د مذهب له نظره څومره ده؟

٣. د لمانځه په لنډ ادا کولو او په سفر کې د روژې خوړلو حکمت د اسلام د مقدس دین له نظره څه شی دی؟

٤. په کومو حالاتو کې مسلمانان د وېرې د لمانځه په ادا کولو مکلفیږي؟

٥. د ویرې د لمانځه ادا کول د اسلامي شریعت له مخې په څه دلالت کوي؟




زده کوونکي دې د آیتونو او احادیثو نه په استفادې سره د لمانځه د ګټو په اړه یوه مقاله ولیکي چې له پنځلسو کرښو څخه کمه نه وي.

لسم لوست

# د ظلم د مخنیوي لپاره د جهاد اجازه

قال الله تعالی: ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۞ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَنْ يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا وَلَيَنْصُرَنَّ اللَّهُ مَنْ يَنْصُرُهُ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ۞ الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ [الحج: ٣٩-٤١]

**د ځينو کلمو معناوي**

| | |
|---|---|
| بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا: | په سبب د دې چې دوی د ظلم مورد وګرځېدل. |
| بِغَيْرِ حَقٍّ: | په ناحقه، په ناروا. |
| صَوَامِعُ: | د صومعه جمع ده، د راهبانو ځانګړي عبادت ځايونه. |
| بِيَعٌ: | د بيعه جمع- د نصاراوو کليساوې. |
| صَلَوَاتٌ: | د يهوديانو عبادت ځايونه. |
| مَسَاجِدُ: | د مسلمانانو عبادت ځايونه. |
| لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ: | برلاسی او غالب دی. |
| إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ: | که چېرې دوی بريالي کړو او قدرت وروبښو په ځمکه کې. |

**ژباړه**

هغو کسانوته (د جهاد) اجازه ورکړل شوه (چې د هغوی پرخلاف په تېري او جګړه لاس پورې کېږي) ځکه، هغوی مظلومان دي او الله ﷻ په يقيني ډول د هغو د ملاتړ وس او توان لري.

دا هغه کسان دي چې له خپلو کورونو څخه په ناحقه وايستل شول، يوازې په دې جرم چې هغوی وايي زموږ رب الله ﷻ دی. که الله ﷻ خلک يو دبل په واسطه دفع نه کړي او مخه يې ونه نيسي، نو د راهبانو خانقاوې، د عيسويانو کليساګانې او د يهوديانو د عبادت ځايونه او جوماتونه چې په هغو کې د الله ﷻ نوم ډېر زيات اخيستل کېږي، دا ټول به نړول شوي واى.

الله ﷻ به هرومرو د هغو کسانو ملا تړي وي څوك چې د هغه د دين ملا تړې وي، الله ﷻ ډېر زورور او بر لاسی دی.

دا هغه کسان دي چې که موږ دوی ته په ځمکه کې وس او واك ورکړو، نو لمونځ به قايم کړي، زکات به ورکړي، په ښو چارو به امر وکړي او د بديو مخه به نيسي او د ټولو چارو پای د الله ﷻ په لاس کې دی

**تفسير**

### په اسلام کې د جهاد مشروعيت

مفسرينو ويلي دي ذکر شوي آيتونه هغه لومړني آيتونه دي چې د جهاد د مشروعيت او روا والي په اړه نازل شوي دي. کله چې د اسلام پيغمبر ﷺ په مکه کې و، مشرکانو د مسلمانانو کوچنۍ ډله ډېره ځوروله، د پيغمبر ﷺ ياران او ملګري به وهل شوي او ټپي شوي د ده حضورته راتلل او خپل مظلوميت به يې د الله ﷻ رسول ته وړاندې کاوه، خو پيغمبر ﷺ به دوی ته ويل: د صبر او زغم څخه کار واخلئ، ځکه چې زه په جنګ نه يم مامور شوی، تر دې چې پيغمبر ﷺ هجرت وکړ او دغه آيت نازل شو.

په دې مبارك آيت کې د مسلمانانو لپاره د جنګ د اجازې علت د دوی مظلوميت بيان شوی، نوځکه الله ﷻ دوی ته امر وکړ چې د خپلې عقيدې، ځان، مال او وطن د دفاع لپاره جهاد وکړي، نو الله ﷻ جهاد په خپل مناسب وخت کې فرض کړ. که چېرې مؤمنان په مکه مکرمه کې په جنګ مأمور شوي وای او دا هغه وخت و چې مشرکان له ډېرښت او قوت نه برخمن وو، نو د مسلمانانو لپاره جهاد يو ستونزمن کار و. کله چې مسلمانان په مدينه منوره کې ځای پر ځای شول او يو مرکز يې جوړ کړ، نو الله تعالى د جهاد حکم نازل کړ. مومنانو ته يې اجازه ورکړه چې له خپلو ځانونو څخه د فاع وکړي او دوی ته يې د بريالیتوب او برلاسی وعده هم ورکړه.

### د ځمکې پر مخ د فساد مخه نيول

بيا الله ﷻ مؤمنان جهاد ته ترغيب او وهڅول او دا يې ورته وښوده چې د ظالمانو په وړاندې جهاد، مقابله او له ځانه دفاع داسې الهي سنت او طريقه ده چې د نړی نظام اومصلحت يې غوښتنه کوي، ځکه که چېرې پر مظلومانو باندې د ظالمانو لاسونه له ظلم او تېری څخه لنډ نشي، د ځمکې پر مخ فساد خپريږي. نو که مؤمنان د مشرکانود ظلم او تېري په وړاندې جهاد

ونه کړي مشرکان نورهم سرکشۍ او فساد ته مخه کوي، د عبادت، خیر او ښیګڼې ځایونه نړوي، نو د ظالمانو په وړاندې جنګ او جهاد د نړېوال نظام د ورانیدو او د ځمکې پر مخ د فساد مخه نیسي.

په ذکر شوي مبارك آیت کې د جهاد مشروعیت د ټولو انسانانو او ټولو ادیانو له حقوقو څخه د دفاع لپاره ذکر شوی. الله تعالی د نورو ادیانو د عبادت ځایونه د مسلمانانو په عبادت ځایونو مقدم کړي، ترڅو څرګنده شي چې جهاد په اسلام کې یوازې د مسلمانانو د حفاظت لپاره نه دی بلکې د ټولو مظلومو انسانانو د دفاع لپاره او د نورو ادیانو د معنوي او دیني حقوقو د حفاظت لپاره هم دی.

**د ټولنې د اصلاح بنسټونه**

ذکر شویو مبارکو آیتونو د اسلامي ټولنې د اصلاح او قوت تر ټولو غوره بنسټونه بیان کړي دي او هغه دا چې د الله ﷻ مومن او ریښتیني بندګان هغه څوك دي چې د الله ﷻ عبادت کوي او د ظلم او تېري په صورت کې هغوی ته دا حق ورکړ شوی دی چې د ظلم او تېري پرخلاف پاڅون وکړي او د خپل ځان او مقدساتو نه دفاع وکړي. د دې آیت او د قرآن عظیم الشأن او د نبوي سنتو د نورو نصوصو پر اساس د مسلمانانوجګړې او جنګونه د شخصي ګټو او غوښتنو د لاسته راوړلو لپاره نه دي بلکې د دې ټولو ترشا لوړ او ستر اهداف او موخې، لکه: د حق او عدالت له ارزښتونو نه دفاع، د مستضعفو او بې وزلو مظلومانو مرسته، د قوت برابرول او پرنورو د تېري او زیاتي مخنیوی او داسې نور شتون لري. کله چې مسلمانان د الله ﷻ په مرسته او توفیق پر یوې ځمکې حاکم او برلاسیتوب پرې حاصل کړي، نو په ټولنه کې د اصلاح د بنسټونو د عملي کولو او تطبیقولو مسؤولیت په اوږو اخلي، ترڅو ټولنه د خیر او کامیابۍ په لور روانه کړي. الله تعالی په دې آیتونو کې مؤمنان خپلو اصلاحي مسؤولیتونو ته متوجه کوي او فرمایي: کوم مؤمنان چې د الله ﷻ د دین مرسته کوي، الله ﷻ له هغوی سره مرسته کوي. کله چې هغوی پرخپلو دښمنانو برلاسي شي او پر ځمکه حاکم وګرځي، د الله ﷻ شکر ادا کوي او د خپلې عقیدې او اخلاص څرګندونه کوي، لمونځونه کوي، محتاجو او مسکینانوته د خپلو مالونو زکات ورکوي، خلك نیکیو او ښیګڼوته رابولي او له بدو او ناوړو کارونو څخه یې ژغوري، د ټولو ستنېدنه او رجوع یوازې الله ﷻ ته ده او الله تعالی به هرچا ته د خپلې وړتیا مطابق بدله ورکړي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له ذکر شویو آیتونو څخه لاندې مطالب ترلاسه کېږي:

❖ د جنګ او جهاد مشروعیت د اللهس د دین د سرلوړۍ لپاره دی، ترڅو انسانان یوازې د واحد الله ﷻ عبادت وکړي او د الله ﷻ مؤمن بندګان او دوستان د ظلم او تېري ښکار ونه ګرځي.

❖ الله تعالی په دې مبارکو آیتونوکې رښتینو مؤمنانو ته د کامیابۍ او برلاسۍ وعده ورکړې ده.

❖ الله تعالی دکافرانو، خیانتګرو او ظالمانو سره د ناکامۍ وعده کړې ده او دوی یې د خپل عذاب او غوسې وړ بللي دي.

❖ جهاد له مظلومانو څخه د دفاع او ملاتړ په خاطر فرض شوی دی، ترڅو انسانان د خپلې عقیدې او عبادت له امله ونه ځورول شي.

❖ د اسلامي حکومت مسؤولیت دی چې په ټولنه کې اسلامي بنسټونه تطبیق کړي. چې د دې دندو په سرکې؛ د لمانځه ادا کول، د زکات ورکول، په نیکیو امر او له بدیو څخه منع کول دي.




۱. لاندې کلمې معنا کړئ.

(بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا – صَوَامِعُ – بِيَعٌ– صَلَوَاتٌ– مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ)

۲. د جهاد د مشروعیت(روا والي) دلیل د مسلمانانو لپاره د مبارکو آیتونو په رڼا کې واضح کړئ.

۳. د مسلمانانو او غیر مسلمانانو د آزادۍ د دفاع لپاره د جهاد ارزښت څه دی؟ د دې لوست د آیتونو په اساس یې شرحه کړئ.

٤. د اسلامي حکومت دندې او مسؤولیتونه د ټولنې په اصلاح کې څه دي؟ په ذکر شویو آیتونو سره یې استدلال وکړئ.

۵. د امربالمعروف اونهي عن المنکر فریضه د ټولنې په اصلاح کې څه رول لوبوي؟ واضحه یې کړئ.



د ټولنې په اصلاح کې د امر بالمعروف اونهي عن المنکر د رول په هکله دوه مخه مقاله ولیکئ.

یوولسم لوست

# روژه او ګټې يې

قال الله تعـالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۞ أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۞ شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۞ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ﴾ [البقرة: ١٨٣-١٨٦]

**د ځينو کلمو معناوې**

کُتِبَ: حکم وشو، فرض کړی شوه.

الصِّيَامُ: روژه.

أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ: ټاکلې ورځې.

الْيُسْرَ: آسانتيا.

الْعُسْرَ: سختي.

أُجِيبُ: قبلوم.

يَرْشُدُونَ: سمه لاره ومومي.

**ژباړه**

ای مؤمنانو! پرتاسې روژه فرض کړای شوې، لکه: چې له تاسې نه د مخکې پېغمبرانو پر پيروانو فرض کړای شوې وه، د دې لپاره چې په تاسو کې د پرهيزګارۍ صفت پيدا شي.

د څو ټاکلو ورځو روژې دي، که له تاسو څخه څوک ناروغ وي يا مسافر وي، نو په نورو ورځو کې دې هماغومره شمېر پوره کړي او کوم خلک چې په تکليف سره د روژې نيولو وس لري(او وېې نه نيسي) ، نو هغوی دې فديه ورکړي، د يوې روژې فديه يو مسکين ته

دوه وخته خواړه ورکول دي. څوك چې په خپله خوښه څه زياته نيکي وکړي نو دا د هغه لپاره غوره ده، خو که تاسې پوهيږئ ، نو ستاسې لپاره ښه همدا ده چې روژه ونيسئ.
رمضان هغه مياشت ده چې په هغې کې قرآن نازل کړای شو چې د انسانانو لپاره له سره ترپايه هدايت دی او داسې ځرگندې لارښوونې پکې دي چې د سمې لارې ښوونکې او د حق او باطل يو له بله په ډاگه بېلوونکې دي. له دې کبله څوك چې دا مياشت ومومي پرهغه لازمه ده چې دا ټوله مياشت روژه ونيسي او که څوك ناروغ يا مسافر وي، نوهغه دې په نورو ورځو کې د روژو شمېر پوره کړي. الله ﷻ پرتاسې آسانتيا راوستل غواړي، سختي راوستل دربانـدې نه غواړي. له دې امله تاسې ته دا طريقه ښودله کېږي چې تاسې د خوړلو روژو شمېر پوره کړای شئ او په کوم هدايت سره يې چې تاسې سر لوړي کړي يئ په هغه سره د الله ﷻ لويي وستايئ او شکر کوونکي اوسئ.
کله چې زما بندگان له تا (محمد) نه زما په باب پوښتنه وکړي ، نوهغوی ته ووايه چې زه ورته ډېر نژدې يم. بلونکی چې کله ما وبولي، زه دهغه بلنه اورم او ځواب يې ورکوم، نو هغوی ته ښايي چې زما بلنې ته لبيك ووايي او پر ما ايمان راوړي. ته دا خبره هغوی ته واوروه. کېدای شي چې هغوی سمه لاره ومومي.

**تفسير**

**د روژې فرضيت**

روژه د شرعې په اصطلاح کې له ځانگړو شيانو څخه، په ټاکلي وخت او ځانکړې طريقې او صفاتو امساك او ځان ساتنې ته روژه ويل کيږي.
روژې د يوه عبادتي رکن او د نفس د تزکيې لپاره د تربيتي طريقې په توگه په ټولو پخوانيو الهي اديانو کې په مختلفوکيفيتونو شتون درلود، مثلا کله په مطلقه توگه له خوراك څخه د ډېرې کولو په بڼه او يا له ټاکلو خوراکونو څخه د ځان ژغورنې په توگه، لکه: د نصاراوو روژه يا په نورو بڼو چې په تفصيل يې موږ نه پوهيږو. ځکه په صحيحو نصوصو کې د تېر شويو امتونو د روژو په اړه تفصيلات نه دي بيان شوي. د شرايطو او آدابو په رعايت د رمضان د مياشتې روژه نيول د اسلام په مقدس دين کې له هر حيثه د روژې تر ټولو کامل شکل دی چې الله تعالی پرې د وروستي پېغمبر امت غوره گرځولی دی. الله تعالی موږ ته په پخوانيو اديانو او امتونو کې د روژې له شتون او فرضيت څخه خبر راکړی دی، ترڅو د وروستي پېغمبر امت د اخرې اوغوره امت په توگه د دې الهي حکم په ادا کولوکې په قوي عزم او ارادې عمل وکړي او د خدایﷻ څخه د وېرې او تقوی په غوره کولو سره عالي درجې او د الله ﷻ رضا حاصله کړي.

مفسرینو ویلي دي: روژه د نورو ډېرو اسلامي احکامو په څېر په تدریج فرض شوي ده. د اسلام گران پیغمبرﷺ په پیل کې مسلمانانو ته لارښوونه وکړه، ترڅو په هره میاشت کې درې ورځې روژه ونیسي، دا روژه فرضي نه وه، بیا د هجرت په دویم کال د روژې د فرضیت په هکله ذکر شوي مبارك آیتونه نازل شول، خو په هغو کسانو چې روژه سخته تمامېده، د هغوی رعایت پکې وشو او دوی کولای شول د هرې روژې پر ځای یو فقیر ته خواړه ورکړي. بیا د روژې نیولو قطعي حکم نازل شو، ترڅو ټول مسلمانان د رمضان د مبارکې میاشتې روژه ونیسي، خو په دین کې د آسانۍ پر بنسټ یې ناروغانو، مسافرو، امیدوارو او شېدې ورکوونکو ښځو او نورو عذر لرونکو ته د روژې نه نیولو اجازه ورکړې چې په نورو ورځو کې به یې قضا راوړي.

روژه د اسلام له ارکانو څخه یو رکن دی. رسول اللهﷺ فرمایلي دي: «بني الإسلام على خمس: شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمَّداً رسول الله، وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة، وحج البيت، وصوم رمضان»[1].

**ژباړه:** د اسلام دین پنځه بناوې لري: په دې گواهي ورکول چې له الله ﷻ پرته بل هېڅ برحق معبود نشته او محمدﷺ د هغه رسول او پیغمبر دی، لمونځ قایمول، زکات ورکول، د بیت الله حج ته تلل او د رمضان د میاشتې روژه نیول.

په مبارکو آیتونو کې د قرآن کریم د نزول د میاشتې په توگه د روژې د میاشتې په فضیلت ټینگار شوی. بیا الله پاك د خپل رحمت له مخې او پر مومنانو د اسانۍ په بنسټ ناروغانو او مسافرو ته د روژې خوړلو اجازه ورکړې چې تفصیلي احکام یې د فقهي په کتابونو کې بیان شوي دي. په دې مبارکو آیتونو کې ټول مسلمانان د روژې په نیولو مکلف شوي دي او پرته له شرعي او معقول عذر څخه د روژې له نیولو غفلت او سترگې پټول د دنیا او آخرت د زیان او تباهۍ موجب گرځي.

لکه: څرنگه چې په یوه حدیث شریف کې د ابوهریرهؓ په روایت نبي کریمﷺ فرمایلي دي: «من أفطر يوماً من رمضان من غير رخصة ولا مرض لم يقضه صوم الدهر كله وإن صامه»[2]. یعنې: څوك چې له رخصت یا ناروغۍ پرته د رمضان یوه روژه وخوري، که ټوله زمانه هم روژه ونیسي د هغې ورځې اجر او ثواب به ونه مومي.

### د اسلامي شریعت په حکمونو کې آسانتیا

په مبارك آیت کې داسې تصریح شوې: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ یعنې الله پاك پر تاسې آسانتیا راوستل غواړي، سختي راوستل دربانديې نه غواړي.

---

۱- صحیح البخاری،کتاب الإیمان ، حدیث ۸

۲- صحیح ابن خزیمه، کتاب الصیام، حدیث۱۸۵٤.

په دې مبارکو آیتونو کې مهربان خدایﷻ ناروغ، مسافر او عمر خوړلو کسانو ته د روژې په احکامو کې آسانتیا راوستې، ناروغ او مسافر ته یې اجازه ورکړې چې د ناروغۍ او د سفر د سختیو له امله روژه وخوري او وروسته یې قضایي راوړي. همدا راز هغو زړو او عمرخوړلو کسانو ته یې هم د روژې خوړلو اجازه ورکړې چې د زوړوالي له امله روژې نه شي نیولای، دا کسان به د هرې روژې په مقابل کې فدیه (یو فقیر ته خواړه) ورکوي.

دا ډول احکام چې مکلفینو ته په کې آسانتیا راغلې وي په شریعت کې د رخصت په نامه یادیږي او د دې په مقابل کې هغه عادي حکمونه چې د تخفیف اړتیا په کې نه وي د عزیمت په نامه یادیږي. باید وپوهیږو چې په شرعي احکامو کې رخصت او عزیمت دواړه د شارع یعنې الله پاک له لوري دي. له رخصت څخه ګټه اخیستل په عزیمت باندې د عمل کولو په څېر یو شرعي کار دی او کوونکی یې د اجر وړ دی. پیغمبر علیه السلام په هغه حدیث کې چې عبدالله بن عمرﷺ روایت کړی په شرعي مسایلو کې له رخصت څخه د ګټې اخیستلو په اړه فرمایي: «إن الله يحب أن تؤتى رخصه، كما يحب أن تؤتى عزائمه»[1] **ژباړه:** الله پاك د خپل رخصت څخه ګټه اخیستل داسې خوښوي، لکه: په خپل عزیمت باندې یې چې عمل کول خوښیږي.

د شرعي رخصتونو احکام، قرانکریم او نبوي سنتو بیان کړي چې شرطونه او اړوند مسایل یې د فقهې په کتابونو کې په تفصیل سره موجود دي.

په شرعي احکامو کې د رخصت شتون د اسلامي شریعت په اعتدال او آسانتیا دلالت کوي او دا څرګندوي چې اسلام د فطرت دین دی، په شرعي احکامو کې داسې څه نشته چې د انسانانو د طبیعت، فطرت یا جسمي او روحي جوړښت سره ټکر ولري او د بشر له توان څخه پورته وي یا انسان په سختۍ کې واچوي، لکه: چې الله پاك د طهارت او پاکۍ د احکامو په ترڅ کې فرمایي: ﴿مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ﴾ [المائدة: ٦] **ژباړه:** الله پاك نه غواړي چې پر تاسو سختي راولي. په همدې ډول په بل ځای کې فرمایي: ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [الحج: ٧٨] **ژباړه:** الله پاك په دین کې پر تاسو هیڅ سختي نه ده ایښې.

په فقه کې یوه قاعده شته چې وایي: «المشقة تجلب التيسير» یعنې سختي آسانتیا راولي. معنا یې دا ده چې هر کله پر مکلف باندې د کوم شرعي حکم په تطبیقولو کې سختي وي ، نو همدا

---

١– مسند امام احمد ابن حنبل، حدیث ٥٧٠٣، صحیح ابن حبان، حدیث ٣٥٥و ٢٧٨٧، مصنف ابن أبي شيبة ، حدیث ٢٥٩٣٢.

سختي له ځان سره رخصت او اسانتيا راولي[1]. د روژې په مبارکه مياشت کې ناروغانو، مسافرو او زړو افرادو ته د روژې خوړلو اجازه او په سفر کې د قصر لمونځ کولو اجازه هر يو د دې قاعدې غوره مثالونه دي. فقهاء وايي چې د ذکر شويو آيتونو تر څنګ دا آيت: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ د دې فقهي قاعدې بنسټ دی چې: المشقة تجلب التيسير.

رسول اللهﷺ په خپل پياوړي تعبير سره اسلام د اسانه دين په توګه راپېژندلی او فرمايي: «الدين يسر»[2] دين اسانتيا ده. همدا راز په هغه حديث کې چې انس بن مالكؓ روايت کړی داسې امر کوي: «يسروا ولا تعسروا، وبشروا، ولا تنفروا...»[3] **ژباړه:** آسانتيا وکړئ او سختي مه کوئ، خلکو ته د دين په کارونو کې زېرى ورکړئ او هغوی له دين څخه مه زړه تورني کوئ. په بل روايت کې راغلي چې پېغمبرﷺ دا حديث درې ځله تکرار کړ. د دې حديث تکرارول په دين کې په اسانتيا، په شرعي احکامو کې په سختۍ او غُلو نه کولو، خلکو سره په نېکه معامله او ديني کارونو کې په زيري ورکولو او د هغو کارونو او ويناوو څخه په ډډه کولو دلالت کوي چې له دين څخه د خلکو د متنفر کېدو لامل کيږي[4].

د رسول اللهﷺ له سيرت څخه هم څرګنديږي چې هغه مبارک به په کارونو کې اسانتيا ته ترجيح ورکوله. په متفق عليه حديث کې ام المومنين عايشه رضي الله عنها د رسول اللهﷺ د خوی په اړه داسې روايت کوي: «ما خير رسول الله ﷺ بين أمرين إلا أخذ أيسرهما، ما لم يكن إثما، فإن كان إثما كان أبعد الناس منه...» **ژباړه:** هېڅکله رسول اللهﷺ ته په دوو کارونو کې اختيار نه دی ورکړل شوی مګر هغه به اسانه غوره کاوه، ترڅو به چې ګناه پکې نه وه، که ګناه به پکې وه، نو د هر چا نه به يې زيات خپل ځان ترې لرې ساته.

له پورتنيو مبارکو آيتونو او هغو حديثونو څخه چې په تفسير کې ذکر شول، دا څرګنديږي چې اسلام يو فطري او اسانه دين دی، د اسلام د نورو ځانګړتياوو تر څنګ دا ځانګړتيا د دې لامل شوې چې اسلامي ارزښتونه هيڅکله نه زړېږي او د قيامت تر ورځې په هر وخت او هر ځای کې د ټولو بشري نسلونو لپاره يو شان د منلو او تطبيقولو وړ دي.

### د اللهﷻ په وړاندې د روژه لرونکو مرتبه

الله تعالی رښتينو او مؤمنو روژه لرونکو ته چې د روژې له نيکمرغۍ څخه برخمن شوي او د اللهﷻ د اوامرو او فرائضو التزام او له نواهيو څخه يې ډډه کړې ده، زيری ورکوي چې که

---

۱- حاشيهء رد المحتار ج۱/ ص ۲۰٤ وص ۲۰۵،وج۳/۲۱۳،الأشباه والنظائر للحنفي ج۹٦/۱.
۲- صحيح البخاری حديث ۳۹، وصحيح ابن حبان ، حديث۳۵۲.
۳- صحيح البخاري، كتاب العلم، حديث ٦۹، صحيح مسلم ، حديث ۳۳۵۱، د امام مسلم په روايت کې د (بشروا) پرځای (سكنوا) لفظ راغلی دی.
٤- مصنف ابن أبي شيبة، حديث ۲٤۸۵۸.

دوی الله ﷻ ته رجوع وکړي او خپلې اړتیاوې له هغه څخه وغواړي، نو مهربان الله ﷻ دوی ته نژدې دی او د دوی هېڅ غوښتنه او دعا به رد نه کړي، لکه: څرنګه چې الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ....﴾

په دې مبارک آیت کې الله تعالی خپل پېغمبر ته خطاب کړی چې هر کله مؤمنان زما د لریوالي او نژدیوالي په هکله له تا څخه پوښتنه کوي، نو زه دوی ته نژدې یم، هره دعا قبلوم چې له سالم زړه او پاک نفس څخه صادره شي.

د تفسیر ځینو علماوو ویلي دي: په مبارک آیت کې د قرآن کریم د جاري اسلوب پرخلاف د(قل) (ووایه ای محمده!) کلمه د مؤمنانو د سوال په ځواب کې ساقطه شوې ده او الله تعالی خپل پېغمبر ﷺ ته د (قل) په ټکي سره له امر کولو پرته خپلو بندګانو ته د ﴿فَإِنِّي قَرِيبٌ﴾ (زه نژدې یم) په جملې سره ځواب ویلی، ترڅو خپلو بندګانو ته خپل ډېر نژدېوالی وښيي چې د مؤمن بنده د دعا او الله ﷻ ترمنځ هېڅ واسطه او پرده نشته[1].

په پورتني آیت کې بندګانو ته د الله نژدېوالی د مکاني نژدېوالي په معنا نه دی، ځکه بندګانو ته د الله پاک مکاني نژدېوالی محال دی. بندګانو ته د الله پاک نژدېوالی په علم، قدرت، رحمت او د دعا په قبلولو سره دی، لکه: چې الله پاک په بل ځای کې فرمايي: ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ﴾ [سورة ق: ١٦] **ژباړه:** موږ انسان پیدا کړی دی او آن د هغه په زړه کې راپیدا کېدونکو وسوسو باندې پوهېږو او موږ د هغه له شهرګ نه هم زیات هغه ته نژدې یو.

د ﴿فَإِنِّي قَرِيبٌ﴾ جمله د انسان په کړو او وینا باندې د الله پاک بشپړ علم ښيي، په دې معنا چې د انسان هېڅ کار او وینا له الله ﷻ څخه پټه نه ده.

### روژه او د دعا قبلېدل

د دې لوست وروستی آیت چې غواړو تفسیر يې کړو دا دی: ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ﴾

مشهور مفسر امام بیضاوي له مخکینیو آیتونو سره چې د روژې په اړه دي، د دې آیت تړاو داسې څرګندوي: څرنګه چې په مخکینیو آیتونو کې الله پاک مومنانو ته د رمضان د بشپړې میاشتې په روژې نیولو، د الله پاک د شکر په ویستلو او د هغه پر لویوالي د اقرار کولو امر

---

۱- التفسيرالوسيط للطنطاوي، تفسیر آیت۱۸۶ سوره‌ء البقرة.

کړی و، په دې آیت کې یې دې ته متوجه کړل چې الله پاک د بندګانو له حالاتو خبر دی، د هغوی خبرې اوري او دعاګانې یې قبلوي[1].

د روژې د آیتونو په منځ کې د دعا د آیت راتللو دلیل امام ابن کثیر داسې راښيي: الله پاک غواړي چې بندګانو ته د رمضان د روژې له بشپړولو وروسته او د روژه ماتي پر مهال د دعا کولو لارښوونه وکړي[2].

د روژې په جریان کې او د روژه ماتي پر مهال د روژې د دعا قبلیدو په اړه له خوږ پیغمبرﷺ څخه زیات احادیث رانقل شوي دي.

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روایت کوي: سمعت رسول اللهﷺ یقول:« للصائم عند إفطاره دعوة مستجابة. فکان عبد الله بن عمر إذا أفطر جمع أهله وولده ودعا»[3]. **ژباړه:** له رسول اللهﷺ څخه مې واورېدل: د روژه ماتي پر مهال د روژتي دعا قبوله ده. عبدالله بن عمرﷺ به د روژه ماتي پر مهال خپله مېرمن او کوچنیان رایوځای کول او په ګډه به یې دعا کوله. په یو بل حدیث کې له رسول اللهﷺ څخه روایت شوی چې فرمایي: «إن للصائم عند فطره دعوة ما ترد»[4]. **ژباړه:** د روژه ماتي پر مهال د روژتي داسې دعا ده چې نه ردیږي.

په بل حدیث کې پیغمبرﷺ فرمایي: «ثلاثة لا ترد دعوتهم: الإمام العادل، والصائم حتى یفطر، ودعوة المظلوم...»[5]. **ژباړه:** د درې کسانو دعا نه ردیږي: د عادل پاچا دعا، د روژتي دعا، ترڅو روژه ماته کړي او د مظلوم بنده دعا.

له دې امله روژتي باید د روژې د میاشتې له برکتونو څخه په ګټې اخیستلو سره په دعا او زارۍ کولو کې زیار وباسي او له الله پاک څخه چې قاضي الحاجات ( د حاجتونو پوره کوونکی) دی د خپلو روا مقصدونو په غوښتلو کې سستي ونه کړي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې د روژې د روحي او روغتیایي ګټو په هکله خپل نظریات وړاندې کړي.

---

١- حاشیة شیخ زاده علی تفسیر البیضاوي، ج١/٤٩٥.
٢- تفسیر ابن کثیر، ج٢/ ص ١٩٣.
٣- مسند أبو داؤود الطیالسي،حدیث ٢٢٦٢.
٤- سنن ابن ماجه ، کتاب الصوم، حدیث ١٧٥٣. والمستدرک للحاکم ج١/ ص ٤٢٢.
٥- المسند للإمام أحمد بن حنبل، ج٢/ ص ٤٤٥،سنن الترمذي ، کتاب الدعوات ،حدیث٣٥٩٨، سنن النسائي،حدیث ١٧٥٢.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

امام فخرالدین رازي رحمه الله ﷻ د رمضان د مبارکې میاشتې په هکله د الله ﷻ د فضل او رحمت دلایل په لاندې توګه بیان کړي دي:

❖ دا فریضه یوازې د اسلام د پیغمبر ﷺ د امت لپاره فرض شوې نه ده، بلکې په پخوانیو امتونو هم فرض شوې وه، نو هر حکم چې عمومیت ولري د هغه ترسره کول هم عام او آسانه وي.

❖ د روژې فریضه د تقوی د حاصلیدلو لامل ده. که دا فریضه نه وای ، نو د تقوی د لوی فضیلت حاصلول به هم له منځه تللي و.

❖ الله تعالی دا لویه فریضه په ټاکلو او معلومو ورځو پورې محدوده کړې ده، که دا فریضه د تل او یا ډېرې مودې لپاره وای، نو د مؤمنانو لپاره به ستونزمنه وه.

❖ الله تعالی د روژې میاشت له ټولو میاشتو نه غوره ګرځولې ده اوپه دې میاشت کې یې قرآن کریم نازل کړ.

❖ الله تعالی د مسافرو او ناروغانو لپاره د روژې نیولو تکلیف او ستونزه لرې کړې ده او د دوی لپاره یې د روژې نیول د راحت او هوساینې په ورځو کې روا ګرځولې ده.




۱. د روژې د مبارکې میاشتې د مرتبې او فرضیت په هکله د لوست په رڼا کې معلومات ورکړئ.
۲. د اسلام په مقدس دین او نورو امتونو کې د روژې توپیر په لنډ ه توګه شرحه کړئ.
۳. د رمضان د میاشتې د روژې د نه نیولو له رخصت نه کوم کسان ګټه پورته کولی شي ؟
٤. کوم کسان چې د رمضان د میاشتې روژه په شرعی عذرونو خوري، باید څه وکړي؟
٥. که څوک پرته له شرعي عذره روژه پرېږدي، پر هغه باندې څه حکم مرتبیږي؟
٦. د لوست وروستی آیت په څه دلالت کوي؟ په لنډه توګه یې واضح کړئ.
۷. د رمضان د میاشتې په روژه کې د مؤمنانو لپاره د الله ﷻ د فضل او رحمت نښې او دلایل شرحه کړئ؟




د رمضان د روژې د ټولنیزو او فردي اغېزو په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

دولسم لوست

# حج د مؤمنانو د نړیوال یووالي څرګندوی

**قــال الله تعــالى:** ﴿وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَنْ لَا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ۝ وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ۝ لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَعْلُومَاتٍ عَلَى مَا رَزَقَهُمْ مِنْ بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ۝ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ۝ ذَلِكَ وَمَنْ يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ عِنْدَ رَبِّهِ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ﴾ [الحج: ۲۶–۳۰]

### د ځینو کلمو معناوې

بَوَّأْنَا: وموټاکه، چمتو مو کړ.

وَأَذِّن: اواعلان وکړه.

رِجَالاً: پیاده- پلي.

ضَامِرٍ: د سفر او لوړې له امله ډنګر او ضعیف.

فَجٍّ عَمِيقٍ: لرې او ژورې لارې، ګوښې او اړخونه.

لْيَقْضُواْ: پاک کړي، لرې کړي.

تَفَثَهُمْ: خپله ناپاکي او خیرې.

الْعَتِيقِ: پخوانی، د زورورو له غلبې څخه آزاد او خوندي.

### ژباړه

یاد کړه هغه وخت چې موږ د ابراهیم علیه السلام لپاره د دغه کور(د کعبې د خونې) ځای ټاکلی و(له دې هدایت سره) چې له ما سره هیڅ شی مه شریکوه او زما کور د طواف کوونکو او قیام او رکوع او سجده کوونکو لپاره پاک کړه.

او خلکوته د حج لپاره عمومي اعلان وکړه چې هغوی تاته له هر لرې ځای څخه پلي او پر اوښانو سپاره راشي.

ترخو هغه ګټې ووينې چې دلته د هغو لپاره موجودې دي او په خو ټاکلو ورځو کې په هغو څارويو باندې د الله ﷻ نوم واخلي چې هغه تعالی دوی ته ورکړي دي، په خپله يې هم وخوري او تنګ لاسو محتاجانو ته يې هم ورکړي.
بيا دې خپل خيرې اوګردونه ليرې کړي، خپل نذرونه (واجبات) دې پوره کړي او د لرغونې خونې طواف دې وکړي.
خبره همدا ده او څوک چې د الله ﷻ د وضع کړای شويو حرمتونو درناوی وکړي ، نو دا ورته د هغه د رب په وړاندې ډېره غوره ده او ستاسې لپاره څاروي حلال وګرځول شول، پرته له هغو شيانو څخه چې تاسې ته بښودل شوي دي، نو د بتانو له پليتۍ نه ځان وساتئ او له دروغو ويناوو څخه ډډه وکړئ.
**تفسير**
**د کعبې شريفې د جوړښت اساس او مقصد**
مبارک آيتونه بيانوي چې کعبه شريفه د توحيد پر بنسټ جوړه شوې ده او د هغې د جوړښت مقصد د يو الله ﷻ عبادت او بندګي ده. الله پاک له لومړۍ شيبې څخه خپل خليل ابراهيم عليه السلام ته د کعبې د جوړولو ځای معلوم کړ او ده ته يې امر وکړ، ترڅو د کعبې تهداب د سوچه توحيد او د ده د عبادت پر بنسټ کېږدي. دا کعبه د شرک او ګمراهۍ له شکوکو او له ظاهري او معنوي پليتيو څخه پاکه کړي، لکه: څرنګه چې يې فرمايلي دي: ﴿ أَنْ لَا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا ﴾
بيا الله تعالی خپل نبي حضرت ابراهيم عليه السلام ته امر وکړ چې د کعبې د ودانۍ له جوړولو څخه وروسته د الله ﷻ بندګانو ته اعلان وکړي چې د کعبې شريفې حج ته راشي. هغه وخت به هغوی ووينې چې د الله ﷻ مومن بندګان د ځمکې له هرې ګوښې او کنارې څخه پلي او سپاره او په هره زمانه کې به په خپلو موجودو وسايلو سره د الله ﷻ د کور د حج او زيارت په نيت ډله ډله راځي او تر قيامته پورې به دا خوځښت، کوښښ او هلې ځلې دوام لري.
ابن کثير په خپل تفسير کې ليکلي دي: کله چې ابراهيم عليه السلام کعبه شريفه جوړه کړه، نو الله ﷻ ورته امر وکړ چې خلک د بيت الله شريف د حج لپاره راوغواړي. ابراهيم عليه السلام وويل: ای زما پالونکيه: زه څرنګه خلک ستا د کور حج ته را وغواړم حال دا چې آواز به مې د ټولو غوږونو ته ونه رسيږي؟ نو ورته وويل شول چې ته اعلان وکړه او رسونه يې

ماته پر پرېږده. ابراهیم‌ علیه السلام اعلان وکړ، خلک یې د بیت الله الحرام حج ته راوبلل. الله تعالی د ابراهیم‌ علیه السلام دا اعلان د ځمکې ټولو سیمو ته ورساوه او ټولو موجوداتو د (لبیک اللهم لبیک) غږ پورته کړ چې د الله‌ جل جلاله د دې وعدې مطابق د میلیونو انسانانو زړونه، د نړۍ په ګوټ، ګوټ کې د کعبې شریفې په لوري هوسېږي او د هغې په لیدو او طواف روښانه کېږي او دا خوځښت به تر قیامته پورې جاري وي.

**حج د خیر، برکت او ګټې موسم**

پورتني آیتونه د حج او اړوندو شعایرو په هکله دي. حج د اسلام پنځم رکن او د دې ستر انسان جوړوونکي دین له مهمو شعایرو څخه دی. حج په هر هغه مکلف مسلمان باندې فرض دی چې د ادا کولو جسمي او مالي توان یې ولري. میلیونونه مسلمانان په کال کې یو ځل د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه د حج په ایماني غونډه کې سره راټول او د اسلامي امت د یووالي ځرګندونه کوي. د احرام په سپینو جامو کې له اخلاص او ایمانه په ډکو اوازونو په یوه وخت او یوه ځای کې دا جملې تکراروي چې: «لبیک اللهم لبیک، لبیک لاشریک لک لبیک،إن الحمد والنعمة لک والملک، لاشریک لک» (مورږ حاضر یو! ربه مورږ حاضر یو! ته شریک نه لرې! مورږ حاضر یو! بېشکه ثنا او نعمتونه ستا دي، پاچاهي ستا ده، ته سیال او شریک نه لرې.)

د حج عبادت د انسانانو تر منځ د برابرۍ او مساوات ځرګندوی دی. په دې انسان جوړوونکي عبادت کې میلیونونه نارینه او ښځینه، د نړۍ له بېلابېلو سیموڅخه، په بېلابېلو ژبو، بېلابېلو رنګونو، د مختلفو قومونو او توکمو څخه په یو رنګ جامو، یوه غږ، یوه وخت او ځای کې واحد الله‌ جل جلاله ته په عبادت مشغولېږي او په بې ساري ستره غونډه کې د انسانانو برابري ننداړې ته وړاندې کوي.

حج د ګناهونو د مغفرت لامل ګرځي او بدله یې جنت ته ننوتل دي. پیغمبر‌ صلی الله علیه وسلم فرمایي: «الحج المبرور لیس له جزاء الا الجنة»[1]. د قبول شوي حج بدله جنت دی. په بل حدیث کې خوږ پیغمبر‌ صلی الله علیه وسلم فرمایي: «من حج فلم یرفث ولم یفسق، رجع کیوم ولدته أمه»[2]. یعنې چا چې حج ادا کړ او په هغه کې یې د جماع او د جماع له مقدماتو څخه (چې په حج او عمره کې د احرام له

---

۱- مسند امام احمد بن حنبل،حدیث ۷۱۹۳، و مسند الحمیدی ، حدیث۹٦۸.

۲- متفق علیه، صحیح البخاری، حدیث۱۷۳۳، و صحیح مسلم، حدیث ۲٤۸۱.

ممنوعاتو څخه دي) ډډه وکړه او د فسق (د حرامو ارتکاب او د فرایضو پرېښودلو) مرتکب نه شو، له ګناه څخه داسې پاکېږي، لکه: له مور څخه چې نوی زیږېدلی وي.

هماغسې چې په مبارک آیت کې راغلي: ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ﴾؛ حج د یو الله په وحدانیت اقرار او د هغه څخه د شریک نفی کول دي، حج له ټولو درواغجنو خدایانو او باطلو معبودانو څخه د کرکې ښرګندونه ده. حج له ظالمو او ستمګرو قوتونو څخه د بېزارۍ اعلان دی، حج د بندګانو د اسارت له منګولو څخه د انسانانو پر آزادۍ ټینګار دی.

د مبارک آیت بله ټینګه غوښتنه دا ده چې څرنګه چې حقیقي لویوالی یوازې الله ﷻ لره دی، باید د هغه د شعایرو حرمت وساتل شي ﴿وَمَنْ يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ عِنْدَ رَبِّهِ﴾.

بل ټکی چې الله تعالی په ذکر شوي آیت کې بیان کړی دا دی چې مؤمنان د بیت الله حج ته په راتګ سره خپلې ګټې لاس ته راوړي. قرآن‌کریم د«منافع» لفظ په ذکر شوي آیت کې د نکرې په توګه یاد کړی چې د منفعت ټولو ډولونو ته شاملېږي او شمېر یې ممکن نه دی. دا هم د قرآن‌کریم له معجزو څخه یوه معجزه او د کعبې شریفې ښیګڼه او برکت دی چې د تاریخ په اوږدو کې مؤمنان او الله پالونکي انسانان هر کال د ځمکې له ګوټ ګوټ نه مکې مکرمې ته راټولېږي او یوه نړیواله غونډه جوړوي او د خپلو دیني او دنیوي ګټو شاهدان وي. د مؤمنانو له دیني ګټو څخه یوه دا ده چې الله تعالی یې ګناهونه ښښي او دعاګانې یې قبلوي او له هغوی څخه راضي کېږي. دنیوي ګټې یې دا دي: په دې مقدس او پاک ځای کې د مسلمانانو راغونډېدل، یو له بل سره پېژندګلوي، مرسته او په خپلو کې یو بل ته د ښېګڼې لاس غځول، بې وزلو ته د خوړو ورکول، مالي ګټې، لکه: د حلال او روا تجارتي مالونو تبادله او نورې بېلابېلې هغه ښېګڼې چې د زمانې په تېرېدو رامنځته کېږي او مسلمانان به یې په راتلونکې کې شاهدان اوسي.

همدارنګه الله تعالی په ذکر شویو مبارکو آیتونو کې په دې مقدس او پاک ځای کې د انسانانو تر منځ مساوات او برابرۍ ته اشاره کړې او پاک د الله په یووالي او له شرک او بت پالنې څخه په ډډه کولو یې ټینګار کړی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د بیت الله الحرام د حاجیانو د ګټو په باره کې چې د عموم لپاره د نکرې په صیغه ذکر شوي دي، بحث او څېړنه وکړي او خپل نظریات دې په ترتیب سره بیان کړي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

په ذکر شویو مبارکو آیتونو کې ډېرې ګټې او لارښوونې پرتې دي چې ځینې یې دا دي:

❖ د کعبې شریفې د ودانولو وجوب، کله چې له نړېدو سره مخ شي.

❖ کعبه او بیت الله الحرام باید پاك او ستره وساتل شي او د طواف کوونکو او لمونځ کوونکو لپاره چمتو واوسي او باید له هر ډول شرك، ګناه، جګړو او شخړو څخه خوندي وي.

❖ د بیت الله الحرام د حاجیانو لپاره د آسانتیاوو د چمتو کولو په خاطر د دفترونو او موسسو جوړولو مشروعیت.

❖ د حج په سفر او د حج په موسم کې مشروع تجارت جواز لري.

❖ مسلمانان د حج د فریضې په ادا کولو کې ګڼې دیني او دنیوي لویې ګټې لاس ته راوړي.




۱. لاندې کلمې او لغات معنا کړئ:

(بَوَّأْنَا- وَأَذِّن- رِجَالاً- ضَامِرٍ- فَجٍّ عَمِيقٍ- لْيَقْضُواْ)

۲. کعبه شریفه چا جوړه کړې ده؟

۳. کعبه شریفه د کومو مقصدونو لپاره جوړه شوې ده؟

٤. د حج د ارکانو نومونه واخلئ.

۵. د حج ځینې دیني او دنیوي ګټې بیان کړئ.




په حج کې د انسانانو د مساوات او برابرۍ په هکله دوه مخه مقاله ولیکئ.

# له خلکو سره نیکي او ښېګڼه

قَــالَ الله تعــالی: ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ۞ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا ۞ وَالَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ۞ وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا﴾ [النساء: ۳۶-۳۹]

**د ځینو کلمو معناوې**

**ذِي الْقُرْبَى:** د خپلوۍ لرونکي (خپلوان).

**وَابْنِ السَّبِيلِ:** مسافر.

**وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى:** د خپلوۍ لرونکی ګاونډی (ګاونډی چې خپلوان وي.)

**وَالْجَارِ الْجُنُبِ:** پردی ګاونډی (ګاونډی چې خپلوان نه وي.)

**وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ:** د سفر ملګری، همیشنی دوست، مېړه یا ښځه.

**وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ:** مریان او وینزې.

**مُخْتَالًا:** په تکبر او غرورسره په لاره تلونکی.

**فَخُورًا:** په نسب، چوکۍ او مال فخر او وياړ کوونکی.

**قَرِينًا:** نژدې ملګری، یو له بل سره تړلی.

**ژباړه**

او تاسو ټول د الله بندګي وکړئ، له هغه سره هېڅ شی مه شریکوئ، له مور او پلار سره غوره چلن وکړئ، له خپلوانو، یتیمانو او مسکینانو سره نیک چلن وکړئ او له خپلوانو ګاونډیانو سره، پردیو ګاونډیانو سره، د څنګ له ملګري، مسافر سره او له هغو وینزو او غلامانو سره چې ستاسې په لاس کې وي، د احسان چا ل چلن وکړئ. یقیناً الله داسې څوک نه خوښوي چې کبرکوونکی، مغروره او په خپله لوړتیا وياړي.

او داسې کسان هم د الله ﷻ نه خوښیږي چې بخیلي کوي او نورو ته هم د بخیلۍ کولو لارښوونه کوي او هغه څه (شتمني) پټوي چې الله ﷻ په خپله پیرزوینه هغو ته ورکړې ده. د دغه راز نعمت منکرو خلکو لپاره موږ رسوا کوونکی عذاب تیار کړی دی.

او هغه خلك هم د الله ﷻ نه خوښېږي چې خپل مالونه صرف خلكو ته د ښودلو(ريا) لپاره لګوي او په حقيقت كې نه پر الله ﷻ ايمان لري او نه د آخرت په ورځ. رښتيا دا ده چې شيطان د چا ملګرى شي د هغه ډېره بده ملګرتيا په برخه شوه.
په دغو خلكو به څه شوي واى كه دوى پر الله ﷻ او د آخرت په ورځ ايمان راوړى واى او څه چې الله ﷻ وركړي دي له هغونه يې لګولي واى؟ كه دوى داسې كولاى، نو له الله ﷻ څخه د دوى د نيكى حال پټ نه پاتې كيږي او هغه وربانديې پوهيږي.

**تفسير**

**له نورو سره احسان او ښېګڼه**

الله تعالى په دې ذكر شويو مباركو آيتونو كې مؤمنانو ته شرعي احكام بيان كړي دي چې عمل پرې وكړي او د دنيا او آخرت نيكمرغي يې په برخه شي. په لومړني آيت كې الله تعالى خپلو بندګانو ته امر كړى چې خاص د ده عبادت وكړي او شريك ورسره ونه نيسي. همدارنګه له خپل مور او پلار سره ښېګڼه وكړي او د دوى له پيروي نه سرغړونه ونه كړي. همدارنګه له خپلوانو، يتيمانو، فقيرانو او خپلو او پرديو ګاونډيانو او دوستانو، لكه: مېړه او ميرمن، د سفر ملګري، ټولګيوا ل او د دفتر همكار، مسافرو، نوكرانو او نورو سره ښېګڼه او احسان وكړي. البته له ذكر شويو خلكو سره احسان او نيكي يو تأكيدي او ضروري امر دى، كه نه احسان او ښېګڼه په اسلام كې په هر حالت كې د مسلمان وجيبه او مسؤوليت دى، لكه چې الله تعالى په بل آيت كې فرمايلي دي: ﴿وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ [البقرة: ١٩٥]
يعنې نيكي وكړئ يقيناً الله نيكي كوونكي خوښوي.

**فعاليت**

زده كوونكي دې د خپل ښوونكي په لارښوونه د ګاونډيانو د ډولونو په باره كې او د دوى د هريوه د حقوقو په هكله د اسلام له نظره بحث او څېړنه وكړي او د ټولګيوالو په مخ كې دې شرحه كړي.

**د بخل او تكبر بدوالى**

په دويم آيت كې الله تعالى بخل او تكبر د دوو ناوړو صفتونو په توګه ياد كړي دي او په ډاګه كړې يې ده چې هغه تعالى د دې دواړو صفتونو لرونكي نه خوښوي. مبارك آيت په مال او علم كې بخل كول دواړه ناوړه كارونه ښودلي دي. اهل كتابو چې د اسلام د پېغمبر ﷺ صفتونه په خپلو كتابونو كې ښه پېژندل، خو پټول يې. د هغوى دا كار تر ټولو ناوړه بخل شمېرل كيږي.
همدارنګه د مدينې يهوديانو به انصارو ته ويل: له محمد ﷺ او يارانو سره يې مالي مرستې مه كوئ چې تاسو به د فقر او بېوزلى سره مخ شئ. الله تعالى د دې بخل او شومتيا په وړاندې دوى ته د ډېر سخت عذاب زيرى وركړ او فرمايي:﴿ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَاباً مُهِيناً﴾.

الله تعالی د منافقانو ډله چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان نه لري، خو د خلکو د غولونې او ریا په خاطر څه مالونه صدقه کوي، ملامت کړي او د شیطان دوستان یې معرفي کړي دي. په پای کې یې دوی ته د بدو پایلو او دردناک عذاب وعده ورکړې. بیاهم مبارک آیت منافقان د ایمان تصحیح ته رابللي، ترڅو د نفاق او د الله ﷻ د لعنت له دایرې څخه ووځي، لکه: چې د دوی په هکله فرمایي: ﴿وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ﴾. یعنې څه زیان به دوی ته رسیدلی وای، که چېرې یې په الله او د آخرت پر ورځ ایمان راوړی وای او له هغه څه نه چې الله دوی ته ورکړي یو څه یې نفقه کولای؟!

## د لوست ګټې او لارښوونې

د ذکر شویو آیتونو ځینې ګټې او لارښوونې په دې ډول دي.

- ❖ عبادت یوازې او یوازې د الله پاک حق دی او هېڅ شی باید ورسره پکې شریک نه شي.
- ❖ په دې آیت او نورو آیتونو کې له مور او پلار سره ښېګڼه کول د الله پاک د توحید او عبادت پسې متصل ذکر شوي چې د مور او پلار سره د ښېګڼې او درناوي کولو په اهمیت دلالت کوي.
- ❖ له نورو سره ښېګڼه کول د مسلمان دنده او مکلفیت دی.
- ❖ فخر او وياړ چې له غرور او تکبر نه پیدا کیږي د الله ﷻ په وړاندې یو ناوړه او کرکجن عمل دی.
- ❖ بخل او په هغه امر کول حرام کار دی، همدارنګه د علم او پوهې پټول هم حرام دي.
- ❖ د ریا حرمت او دا چې ریا کاران ترټولو زیات بد دي.
- ❖ د نا اهلو ملګرو بدي چې یو بل بدو او ناوړو کارونو ته رابولي.




١. لومړي مبارک آیت د لسو حقونو په اداء کولو امر کړی، هغه لس حقونه کوم دي؟
٢. په علم او پوهه کې له بخل څخه مراد څه شی دی؟ دیوه مثال په ترڅ کې یې څرګند کړئ.
٣. په پورتني آیت کې د ریا کارانو بدي بیان شوې ده. له ریا کارانو څخه په دې آیت کې کوم کسان مراد دي؟
٤. په تېر شوي آیت کې شیطان د کومو خلکو ملګری ښودل شوی او د شیطان د ملګرتیا پایلې څه دي؟




د آیتونو او احادیثو په رڼا کې (د علم په خپرولو کې د بخل کولو زیانونه) تر سرلیک لاندې پنځلس کرښې مقاله ولیکئ.

څوارلسم لوست

# حلاله روزي خوړل او له حرامو ډډه کول

قال الله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ۞ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ [البقرة: ۱۷۲-۱۷۶]

**د ځينو کلمو معناوې**

طَيِّبَاتِ: د طيب جمع ده، حلال شيان.
الْمَيْتَةَ: له ذبحې پرته مړ شوی حيوان.
وَالدَّمَ: د ذبحې په وخت کې روانه وينه
أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ: هغه چې د الله ﷻ له نامه پرته د بل چا په نوم ذبحه شوی وي.
اضْطُرَّ: اړايستل شو. د لوږې يا وهلو په وسيله.
غَيْرَ بَاغٍ: بغاوت او تيری کوونکی نه وي.
ولاعَادٍ: له حد نه تېرېدونکی نه وي.

**ژباړه**

ای مؤمنانو! که تاسې په رښتيا سره د الله ﷻ بندګي کوونکي ياست، نو کوم پاک شيان چې موږ درکړي دي، هغه په ډاډه زړه خورئ او د الله شکر وباسئ.
د الله له لوري که پر تاسې څه بنديز لګول شوی، نو هغه دا دی چې مرداره مه خورئ، د وينې او خنزير د غوښې له خوړلو ډډه وکړئ او داسې کوم شی مه خورئ چې پرهغه له الله ﷻ نه پرته د بل چا نوم اخيستل شوی وي. هو، که څوک د اړتيا په حالت کې وي او له دغو شيانو څخه کوم شی، پرته له دې چې د الهی حکم د ماتولو اراده ولري يا له حده تيری وکړي، وخوري، نو پرهغه څه وبال او ګناه نشته. الله ﷻ بښونکی او رحم کوونکی دی.

**تفسير**

د جاهليت په زمانه کې د عربو مشرکانو د خپلو پلرونو او نيکونو په پوچ او بې مفهومه تقليد سره هغه حيوانات چې الله ﷻ حلال ګرځولي وو، په مختلفو بڼو د بتانو په نامه نذر کول او په ځانونو يې حرام کړي وو. همدارنګه اهل کتابو، په تېره نصاراو او ځينو نورو ملتونو، په خپل باطل ګومان خپل نفس ته په عذاب ورکولو او له مختلفو نعمتونو څخه د ځان په محرومولو الله ﷻ ته نژديوالی غوښته.

الله تعالی محمدي امت ته په ټولو ملتونو او امتونو غوره والی وبښه او هغه یې وسط او منځګړی امت وګرځاوه. په تېرشویو آیتونو کې الله تعالی مومنانو ته خطاب کړی کوم ځاروي او نور پاکیزه شیان چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د روزۍ په عنوان تاسو ته حلال کړي دي، هغه وخورئ، خو د دې نعمتونو په وړاندې د خپل پروردګار په الوهیت او ربوبیت اعتراف وکړئ، د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر او ستاینه ادا کړئ او دغه الهي نعمتونه د مشرکانو او نورو ملتونو په څېر په ځانونو مه حراموئ، ځکه الله تعالی وینه، د خنزیر غوښه، د هغه حیوان غوښه چې پخپله مړ شوی وي او یا پرې د الله تعالی له نوم پرته د بل چا نوم اخیستل شوی وي، حرام ګرځولي دي، خو سره له دې هم که څوک مجبور او ناچاره شي ، نو له هلاکت نه د ځان ژغورلو لپاره له همدې حرامو شیانو څخه ګټه اخیستلی شي، په دې شرط چې د دې حرامو شیانو په خوړلو کې یې د خپل نفس لذت او خوشحالي مراد نه وي او یا دې حرامو ته په حلالو شیانو غوره والی ورنه کړي. همدارنګه دا حرام خواړه د ضرورت له اندازې زیات ونه خوري، بلکې دومره وخوري چې خپل ځان له هلاکته وژغوري.

په دویم آیت کې الله پاک ځینې شیان حرام کړي دي او مسلمان مکلف دی چې له خوړلو یې ځان وساتي. له شک پرته د نومړو شیانو په حراموالي کې زیاتې ګټې او حکمتونه شته، ځکه علیم او حکیم خدای په خپل ازلي علم او حکمت سره ښه پوهېږي چې کوم شیان انسانانو ته ګټور او کوم ورته زیانمن دي. نن چې د قرآن مجید له نزول څخه څه د پاسه څوارلس سوه کاله تېر شوي دي، علمي څېړنې ښیي د هغو شیانو خوړل چې اسلام منع کړي دي، لکه: د خوګ غوښه، مرداره، شراب، مخدره توکي، او داسې نور د انسان روغتیا ته په زیان رسولو سربېره د نورو زیاتو اقتصادي او ټولنیزو زیانونو لامل هم کیږي.

د هغو ځارویو د غوښې خوړلو تحریم د آیت بله غوښتنه ده چې له الله پاک څخه پرته د بل چا په نامه ذبحه یا نذر شوي وي. پرته له شکه ذبحه او نذر د لمانځه، روژې، زکات، دعا، رکوع او سجدې په څېر د عبادت له ډولونو څخه دي او له الله جَلَّ جَلَالُهُ پرته د بل چا عبادت کول شرک او ناروا عمل دی، ځکه عبادت یوازې او یوازې د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره خاص دی. مسلمانان په هر لمانځه کې په وار وار سره د دې آیت په لوستلو ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ [الفاتحة: ٤] د یو خدای جَلَّ جَلَالُهُ سره ژمنه کوي چې یوازې د هغه عبادت به کوي او د هغه سره به هیڅوک په عبادت کې نه شریکوي.

الله تعالی د آیت په آخر کې په مومنانو احسان کړی، عفوه او بښنه یې ورته اعلان کړې او د خپل دین په آسانۍ یې ټینګار کړی.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د خپل ښوونکي په لارښوونه د ﴿غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ﴾ د مفهوم په هکله بحث او څېړنه وکړي.

## د لوست ګټې او لارښوونې

❖الله تعالی په خپلو بندګانو نعمتونه پېرزو کړي دي چې له هغو څخه د حلالې او پاکې روزي په توګه ګټه واخلي او د الله ﷻ شکر او ستاینه وکړي.

❖په مبارک آیت کې حلال شیان د خپل عاموالي او زیاتوالي له مخې شمېرل شوي نه دي، یوازې حرام شیان شمېرل شوي او نومونه یې یاد شوي دي.

❖میته (مردار) هغه حیوان دی چې پرته له ذبحې یې سا وتلې وي.

په مړو حیواناتو کې ټول هغه حیوانات شامل دي، چې زندۍ شوي وي، وهل شوي وي، له کوم لوړ ځای څخه لویدلي وي، په ښکر وهل شوي وي یا ځیرووونکو حیواناتو نیم خوړلي وي او یا د ژوندي حیوان له بدن څخه کومه ټوټه غوښه پرې شوې وي.

❖همدارنګه خوږ پیغمبرﷺ په صحیح حدیث کې د ښېرووونکو حیواناتو او پنجې لرونکو مرغانو له خوړلو منع کړې او هغه یې حرام ګرځولي دي.

❖ماهی(کب) او ملخ د پیغمبرﷺ د دې حدیث پر بنسټ د مردار حیوان له حکم څخه خارج دي، چې فرمایي: "أحلت لنا میتتان ودمان: السمك والجراد والكبد والطحال" یعنې موږ ته دوه مړه او دوه وینې حلالې شوي دي: ماهی او ملخ، ینه او توری.

❖حرامه وینه هغه ده چې له ژوندي حیوان څخه یا د حیوان د ذبحې په وخت کې جاري شوې وي، خو کومه وینه چې له غوښې سره ګډه ده، هغه حرامه نه ده، خوړل یې باك نه لري.

❖د خوګ غوښه، غوړي، پوستکی او ټول اجزاء یې په حرمت کی شامل دي.

❖الله تعالی د ذکر شویو حرامو شیانو خوړل د ضرورت او ناچارۍ یعنې د نفس د هلاکت له ویرې په دې شرط روا کړي، چې په آیت کې راغلې استثناوې مراعات شي.




١. د لاندې کلمو او لغاتو معنا روښانه کړئ:

(الْمَيْتَةَ، وَالدَّمَ،أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ، اضْطُرَّ، غَيْرَ بَاغٍ، عَادٍ)

٢. کوم شیان دي چې په آیت کې حرام ګڼل شوي دي؟

٣. د مردارو حیواناتو له ډلې څخه کوم حیوانات مستثنا دي؟ په نبوي حدیث یې ثابت کړئ.

٤. حرامه وینه کومه ده؟ واضحه یې کړئ.

٥. له ﴿وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾ څخه مراد څه شی دي او ولې د محرماتو په ډله کې راغلي دي؟

٦. مسلمان په کوم حالت او د کومو شرطونو لاندې کولای شي له حرامو شیانو ګټه واخلي؟



زده کوونکي دې د بېلابېلو حرامو خوړو د صحي او ټولنیزو زیانونو په اړه شل کرښې مقاله ولیکي.

پنځلسم لوست

# د الله ﷻ په لار کې انفاق (مال لګول)

قال الله تعالی: ﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ۞ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَا أَنْفَقُوا مَنًّا وَلَا أَذًى لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۞ قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ۞ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذَى كَالَّذِي يُنْفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا لَا يَقْدِرُونَ عَلَى شَيْءٍ مِمَّا كَسَبُوا وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ [البقرة: ٢٦١-٢٦٤]

**د ځینو کلمو معناوې**

يُضَاعِفُ: زیاتوي، څو برابره کوي يې.

مَنّاً: احسان بارول، د خیراتونو یادونه د فخر، وياړ او غوره والي غوښتلو په نیت.

أَذىً: آزار ورکول په بده او ناوړه خبره چې عزت ته يې زيان ورسيږي.

قَوْلٌ مَعْرُوفٌ: نیکه او ښه وینا.

مَغْفِرَةٌ: ښښنه د فقير او درويزه ګر له بد چلن څخه تېرېدنه.

غَنِيٌّ: ذاتي بډای چې هيڅکله نه محتاجيږي.

حَلِيمٌ: عفوه کوونکی، جزا ورکولو ته بېړه نه کوونکی.

صَفْوَانٍ: ښوېه تیږه.

وَابِلٌ: سخت باران.

صَلْداً: لغړه، له خاورو پاکه.

**ژباړه**

کوم خلك چې خپل مالونه د الله ﷻ په لاره کې لګوي د هغو د لګښت مثال داسې دی، لکه چې یوه دانه وکرله شي او له هغې نه اووه وږي زرغون شي او په هر وږي کې سل داني وي، په همدې ډول کله چې د چا عمل ته د الله ﷻ خوښه شي، زیاتوالی پکې راولي هغه هم پراخوونکی او هم د علم څښتن دی.

کوم خلك چې خپل مالونه د الله ﷻ په لار کې لګوي او له لګښت نه وروسته پاسلونه نه کوي (احسان نه بار وي)، نه آزار ورکوي، د هغو ثواب د هغو له رب سره دی او پر هغو څه وېره، ترهه، غم او خپګان نشته.

یوه خوږه خبره کول او له یوې ناوړې خبرې نه تېرېدل له هغه خیرات نه ډېر ښه دي چې ورپسې ازارول وي، الله ﷻ بې نیازه دی او زغم د هغه صفت دی.

ای مؤمنانو! خپل خیراتونه په پاسلونه او ازار رسولو د هغه چا په څېر مه باطلوئ چې خپل مال مازې خلکو ته د ښودلو لپاره لګوي، نه یې پر خدای ﷻ ایمان وي او نه د آخرت په ورځ، د هغه د لګښت مثال داسې دی، لکه: یوه ښویه تیږه چې دوړه پرې ناسته وي، کله چې سخت باران پرې وورېږي، ټوله دوړه ترې یوسي او تیږه هماغسې ښویه سوتره پاتې شي. دې خلکو چې په خپل ګومان سره د خیرات کومه نیکي ګټلې ده له هغې نه هیڅ شی، د هغو لاس ته نه ورځي او کافرانو ته الله ﷻ سمه لاره نه ښيي.

### تفسیر

### د نازلېدلو سبب

د یو روایت له مخې دا مبارک آیت ﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ...﴾ د حضرت عثمان بن عفان او عبد الرحمن بن عوف په هکله نازل شوی. عثمان بن عفان د تبوك په غزا کې د اسلام لښکر مجهز کړ او عبدالرحمن بن عوف خپله نیمه پانګه، چې څلور زره در همه وه، د تبوك د غزا په خاطر د اسلام پیغمبر ﷺ ته وړاندې کړه . د الله رسول ﷺ داسې دعا ورته وکړه: الله ﷻ دې په هغه څه کې چې خیرات او صدقه دې کړل او په هغه څه کې چې ځان ته دې وسپمول، برکت واچوي. همدارنګه د عبدالرحمن بن سمره د روایت مطابق کله چې عثمان بن عفان زر دیناره د نبی کریم ﷺ په حضور کې کېښودل، نبي کریم ﷺ د خوشحالۍ په حال کې دا روپۍ په خپلو مبارکو لاسونو لاندې باندې کولې، ویې فرمایل:" لویه خدایه، زه هم ترې راضي شوم او ته هم ترې راضي اوسه."

### د الله ﷻ په لار کې د مال لګولو څو برابره اجر

مفسرینو کرامو ویلي دي چې د ذکر شویو آیتونو حکم هر هغه مخلص نفقه ورکوونکي ته شامل دی چې خپل مال یې د الله ﷻ په لاره کې لګولی وي، قرآنکریم یې حالت د هغه تخم له دانې سره تشبیه کړی چې په حاصلخیزه ځمکه کې شنه شي، ښه وده وکړي او اووه وږي راوباسي چې په هر وږي کې سل دانې وي. دا ښایسته تشبیه هغه روښانه تعبیر دی چې الله تعالی د خپلو مؤمنو بندګانو د سوچه او ښایسته عملونو اجر او

ثواب داسې درنوي، لکه: هغه روغه دانه چې په ښه حاصل ورکوونکې ځمکه کې وکرل شي او ښه زيات حاصل ورکړي.
بيا مبارک آيت بيانوي چې الله تعالی د الله په لارکې د مال لګوونکو اجر او ثواب څو برابره کوي، بلکې د صدقې او مال لګولو اجر او ثواب د انفاق کوونکي حالت ته په پام سره تر اووه سوه چنده زيات ورکوي. لکه: چې الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿والله يُضَاعِفُ لِمَن يَشَآءُ﴾. هرکله چې صدقه په خالص نيت له سالم زړه څخه، له پاک نفس څخه او د حلال مال څخه په مناسب ځای کې ورکړل شي، په باوري توګه د هغې ثواب څو برابره، بلکې بې حسابه دی، ځکه د الله ﷻ فضل، احسان او ښښنه حدود نه لري. له همدې امله مبارک آيت په دې لويه وعده ختم شوی: ﴿والله وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾ يعنې په خپل پراخ فضل او علم سره هر انسان ته د ده د نيت او عمل برابر بدله ورکوي.

### احسان بارول او ازار رسول صدقې باطلوي

وروسته آيت کې پر محتاج او درويزګر باندې د صدقه کوونکي احسان بارول او ازار رسول په سختو ټکو غندل شوي دي. دغه مبارک آيتونه ټينګار کوي، لکه: څرنګه چې الله ﷻ تعالی د مخلصانه صدقې او د الله ﷻ په لاره کې د لګښت اجر او ثواب څو برابره کوي او خاوند يې له هرډول ويرې او اندېښنو څخه په خپل امان کې ساتي، په همدې اندازه هغه صدقه او انفاق چې د ريا او احسان بارولو او ازار رسولو سره مل شي، باطل او بې اغېزې کيږي او څښتن يې په دنيا او آخرت کې د سخت عذاب وړ ګرځي. په مبارک آيت کې د احسان بارولو او ازار رسولو څخه مقصد دا دی چې صدقه کوونکی د توهين او سپکولو په نيت صدقه اخستونکي ته خپله مرسته او صدقه وريادوي او احسان پرې اچوی او يا په بل ډول ورته ضرر او زيان رسوي. له همدې امله الله پاک فرمايي چې فقير، محتاج او درويز ګر ته نېکه خبره کول له هغې صدقې څخه غوره دي چې له ضرر او زيان سره مله وي، ځکه نېکه خبره او د درويزګر د ټينګار په مقابل کې هغه ته عفوه او ښښنه، له يوې خوا د درويزګر د نفس د پاکۍ، مينې او محبت لامل ګرځي او له بلې خوا اجر او ثواب پرې حاصليږي، خو هغه صدقه او انفاق چې له احسان او منت سره مل وي، د فقير او محتاج د زړه ماتيدو او بې عزتۍ لامل ګرځي او د هغه رنځ او درد زياتوي.

د اسلام د پیغمبرﷺ صحیح حدیث دی چې: «الکلمة الطیبة صدقة»[1] یعنې: ښه خبره صدقه ده.

وروستي آیت د تهدید او وېرولو په لهجه مؤمنانو ته خطاب کړی او په صدقه کولو کې یې له احسان بارولو او ضرر رسولو څخه منع کړې دي، ځکه احسان بارول او ضرر رسول د صدقې او مال لګولو ثواب د اللهﷻ په نزد له منځه وړي او صدقه کوونکی د خلکو له منني او احسان څخه هم محروموي. له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چې د اللهﷻ پیغمبرﷺ فرمایي: "لا یدخل الجنة مدمن خمر، ولا عاق لوالدیه، ولا منّان"[2] یعني: عادتي شراب څښونکی، د مور او پلار عاق(نامنونکی) اولاد او احسان باروونکی جنت ته نه شي داخلیدای.

مبارک آیت هغه صدقه چې احسان بارول او ځورول ورسره مل وي، له هغه منافق سره تشبیه کړې چې د ریا او ځان ښودنې په خاطر صدقه کوي او د اللهﷻ له اجر او ثواب څخه محروم وي. مبارک آیت مؤمنانو ته خطاب کوي چې خپلې صدقې او نفقې په احسان بارولو او ځورولو مه باطلوئ، ترڅو د هغه منافق په څېر نه شئ چې ریايي او نمایشي اعمال یې له منځه تللي وي. د احسان بارولو او ځورولو سره مل صدقه د هغې تیږې په څېر ده چې لږه دوړه پرې پرته وي، خو د سخت باران د اورېدو له امله تېږه له دوړو او ګرد څخه پاکه شي او هیڅ حاصل نه ورکوي.

د منافق د ریايي اعمالو حالت همداسې دی چې د اللهﷻ په دربار کې اجر او ثواب نه لري او نه له هغه څخه څه ګټه په لاس راوړي او اللهﷻ کافرانو ته چې کفر یې پر ایمان غوره ګڼلی، د ګټې په لوري هدایت نه کوي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې په صدقې او مال لګولو کې د احسان د بارولو او ځورولو په هکله څو داسې نمونې، چې زموږ په ټولنه کې رواج لري، بیان کړي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

له مبارکو آیتونو څخه لاندې ګټې او لارښوونې ترلاسه کیږي:

- د صدقه کوونکي لپاره د صدقې اونفقې غوره والی او د هغې ګټې او پایلې.
- د اللهﷻ په لارکې په مال لګولو باندې د احسان اچولو او ځورولو حراموالی.

---

۱- صحیح البخاری، صحیح مسلم حدیث ۱۰۰۹.
۲- النسائي في سننه الکبری ج ۳/ ص ۱۷٦ حدیث: ٤۹۲۰.

❖ په دنیا کې د خلکو له منني او احسان او په آخرت کې د الله ﷻ له اجر او ثواب څخه د احسان باروونکي صدقه ورکونکي بې برخې والی.

❖ محتاج او فقیر ته په ښه اونیکه خبره ځواب ورکول او درویزه ګرته د نبي کریم ﷺ د حدیث "الکلمة الطیبة صدقة". سره سم د سوال په ټینګار او بد خویی عفوه او تېریدنه.

❖ د ریا حراموالی، لکه: چې پېغمبر ﷺ فرمایي: "وَإِيَاكُمْ وَالرِيَاءَ فَإِنَّه الشِرْكُ الأصْغَر". یعني: له ریا څخه پرهیز وکړئ ځکه ریا وړوکی شرک دی.



۱. لاندې کلمې او لغات معنا کړئ:

(يُضَاعِفُ- مَنّاً- أَذىً- مَغْفِرَةٌ- صَفْوَانٍ- وَابِلٌ- صَلْداً)

۲. ددې آیت ﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ﴾ د نزول لامل شرحه کړئ؟

۳. الله پاک کوم ډول صدقې قبلوي؟

٤. الله ﷻ څرنګه صدقې څو برابره کوي؟ په مبارک آیت استدلال وکړئ.

۵. له احسان او ځورولو سره مل صدقه څرنګه ده؟ دمثال په ترڅ کې یې شرحه کړئ.

٦. د درویز ګر په وړاندې نېکه خبره صدقه ده، د دې جملې معنا روښانه کړئ.

۷. الله تعالی هغه صدقه ورکوونکی چې په صدقې پسې احسان اچوي او ځورول کوي له جنته محروم کړی، په دې هکله حدیث نقل کړئ.

۸. مبارک آیت هغه صدقه ورکوونکی چې له صدقې څخه وروسته احسان باروي او یا ځورول کوي له ریا کار منافق سره تشبیه کړی. دا تشبیه شرحه کړئ.

۹. له احسان او اذیت سره مل صدقه په آخري آیت کې څرنګه تشبیه شوې ده؟ واضحه یې کړئ.

شپاړسم لوست

# په قران کریم کې انساني مساوات

قال الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ۞ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُلْ لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ وَإِنْ تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَا يَلِتْكُمْ مِنْ أَعْمَالِكُمْ شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۞ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ [الحجرات: ۱۳-۱۵]

**د ځينو کلمو معناوې**

**شُعُوبًا:** د شعب جمع، ډېر خلك چې يو واحد اصل سره جمع کړي وي.

**قَبَائِلَ:** د قبيلې جمع ده د شعب يوه څانګه.

**لِتَعَارَفُوا:** ترڅو له يو بل سره وپېژنئ.

**أَكْرَمَكُمْ:** ستاسو تر ټولو درونډ او عزتمن.

**لَا يَلِتْكُمْ:** له تاسو څخه نه کموي.

**لَمْ يَرْتَابُوا:** شك او شبهه يې ونه کړه.

**ژباړه**

ای خلکو! موږ تاسې له يوه نارينه او يوې ښځې څخه پيدا کړئ او بيا مو تاسې قومونه او قبيلې وګرځولئ، ترڅو يو تر بله وپېژنئ. په حقيقت کې د الله ﷻ په نزد له تاسې نه تر ټولو زيات عزتمن هغه څوك دی چې په تاسو کی تر ټولو زيات پرهېزګار وي. په باوري ډول الله ﷻ پر هر څه پوهېدونکی او باخبره دی.

اعرابو(دکلي او بانډې اوسېدونکو) وويل: موږ ايمان راوړی. دوی ته ووايه تاسو ايمان نه دی راوړی، بلکې داسې ووايئ چې موږ اطاعت کوونکي شو، ايمان لا تر اوسه ستاسې په زړونو کې داخل شوی نه دی. که تاسې د الله ﷻ او د هغه د رسول فرمانبرداري غوره کړئ، نو هغه به ستاسې د عملونو په اجر کې څه کموالی را نه ولي. په باوري ډول الله ﷻ غفور او رحيم دی.

په حقيقت کې خو مؤمنان هغه دي چې پر الله ﷻ او د هغه پر پېغمبر ﷺ يې ايمان راوړ. بيا هغوی څه شك ونه کړ او په خپلو مالونو او سرونو سره يې د الله ﷻ په لاره کې جهاد وکړ. هغوی ريښتوني خلك دي.

**تفسیر**

**د بشریت د اصل یووالی**

الله تعالی په لومړني مبارك آیت کې ټول انسانان مخاطب کړي او ټینګار یې کړی چې تاسې مې له یو واحد اصل څخه پیداکړي یئ چې آدم او حوا دي. بیا مې تاسې د کورنیو او قبیلو او ډلو په بڼه وګرځولئ، ترڅو د نسب، خپلولۍ، قبیلو او ډلو په پېژندلو سره د یوې روغې او نیکې ټولنې په منځ ته راوړلو یو له بل سره مرسته وکړئ، نه د حیواناتو په څېر چې خپل اصل او نسب نه پېژني او د عقل او پوهې له نعمت څخه محروم دي. په دې وجه قرآن کریم د داسې انساني وحدت لپاره دعوت کوي چې د عدل، مساوات، محبت او وروروګلوۍ پر بنسټ ولاړ وي.

باید وپوهېږو چې په نړۍ کې د پرمختګونو او تمدنونو رامنځته کېدل د انسانانو له یو بل سره د پېژندګلوۍ نتیجه ده، ځکه پېژندګلوي تفاهم رامنځته کوي او تفاهم د تعاون لامل کیږي.

همدارنګه قرآن کریم په دې مبارك آیت کې د رنګ، نژاد او جنسیت توپیرونه په پام کې له نیولو سره پرته، د انسان حقوق اعلان کړي چې ټول انسانان په نسب کې سره ورونه دي او د دوی انساني عزت او کرامت خوندي دی، ځکه انسان د الله ﷻ عزتمن مخلوق او د ځمکې پر مخ د ده خلیفه دی. ټول انسانان یو واحد اصل ته رسیږي چې آدم او حوا علیهما السلام دي، خو هغه څه چې د دوی ترمنځ د غوره والي معیار دی هغه دیني ارزښتونه او د الله ﷻ او رسول اطاعت او پیروي ده. د اسلام ستر پیغمبر ﷺ فرمایلي: "إن الله لا ینظر إلی صورکم وأموالکم، ولکن ینظر إلی قلوبکم وأعمالکم"[1] یعنې الله ﷻ ستاسو څېرو او سرمایو ته نظر نه کوي، بلکې ستاسو زړونو او عملونو ته ګوري.

په دې ترتیب قرآن کریم د بشریت ټول اختلافات او توپیرونه یوې خوا ته پرېښې او انسانان یې د توحید او تقوا تر بیرغ لاندې راوستلي دي، ترڅو د یو بل په مرسته او کومک د الله ﷻ عبادت وکړي او د خپلولۍ او عصبیت له ټولو ډولونو او جاهلانه دعوو او ناندریو څخه ځانونه لیرې وساتي، لکه: څرنګه چې د اسلام پیغمبر ﷺ اعلان کړی: «کلکم بنو آدم، وآدم خلق من تراب. ولینتهین قوم یفتخرون بآبائهم، أو لیکونن أهون علی الله تعالی من الجعلان»[2] یعنې تاسو ټول د آدم اولاده یاست او آدم له خاورې پیدا شوی. باید هر قوم یا ډله په اصل او نسب له ویاړ څخه ځان وژغوري، پرته له هغه څخه د الله تعالی په دربار کې به له «جِعلان»[3] څخه هم ټیټ او بې ارزښته وي.

---

۱- روایت مسلم.

۲- تهذیب سنن أبي داؤود ج۲/۴۷۱.

۳- (جعلان) دجیم په زیر هغه وړه حشره ده چې د حیواناتو د خوشایو سره ژوند کوي او خوراك یې د حیواناتو نجاست دی او هرکله چې خوشبویي ورته ورسیږي مري.

**د ایمان او اسلام نعمت**

وروسته له دې چې قرآن مجید دا اصل اعلان او تثبیت کړ چې ټول انسانان یوې مبدې او اصل ته راګرځي او دغوره والي او بهترۍ معیار د بني ادمانو په منځ کې تقوا او نیک عمل دی، بیا مبارکو آیتونو بیان کړی چې یوازې د ایمان کلمه کافي نه ده، بلکې باید قلبي تصدیق او د اسلام د اوامرو او نواهیو ظاهري اطاعت او عملي التزام ورسره ملګری وي، ترڅو الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د منلو وړ وګرځي.

په نبوي پیر کې په بانډه چیانو کې داسې کسان وو چې په ژبه یې د ایمان دعوه کوله، خو زړونه یې په دنیا او دنیوي ګټو مشغول وو، نو ځکه الله تعالی خپل پېغمبر ﷺ ته امر وکړ هغوی ته ووایی چې یوازې په ژبه د ایمان په څرګندولو تاسو حقیقي مؤمنان نه ګڼل کېږئ، ترڅو زما رسالت تصدیق نه کړئ او د الله او رسول ټولو اوامرو او نواهیو ته تسلیم نشئ. په دې توګه مبارکو آیتونو د ایمان حقیقت بیان کړی، فرمایي: ﴿إِنَّمَا المؤمنون الذين آمَنُواْ بالله وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُواْ وَجَاهَدُواْ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ الله أولئك هُمُ الصادقون﴾ یعني حقیقي مومنان هغه کسان دي چې پر الله جَلَّ جَلَالُهُ او د الله جَلَّ جَلَالُهُ پر پېغمبر ﷺ ایمان راوړي او په خپلو عقیدوکې هېڅ شک او شبهې ته لاره نه ورکوي او پر باطل باندې د حق د برلاسی په لار کې ځان او مال نه سپموي، همدا رښتیني مؤمنان دي.

مفسرین وایي: دغه مبارک آیت په دې دلالت کوي چې ایمان د اسلام په نسبت خاص دی، لکه څرنګه چې د جبرایېل په حدیث کې لومړی د اسلام پوښتنه شوې بیا د ایمان او وروسته د احسان. یعني له عام څخه خاص ته ارتقا شوې ده، نو ایمان او اسلام یو د بل بشپړوونکي دي او یو پرته له بله کفایت نه کوي.

د یو روایت له مخې په نهم هجري کال چې د(عام الوفود) په نامه یاد شوی، د بنی اسد د قبایلو هیئت له خپلو زیاتو وګړو سره د پېغمبر ﷺ حضور ته راغی او خپل اسلام یې اعلان کړ. د احسان بارولو په قصد یې د الله پېغمبر ﷺ ته څرګنده کړه چې موږ د خپلې قبیلې له ټولو وګړو سره پرته له جنګه اسلام راوړ، په داسې حال کې چې نورو قبایلو له تاسره جنګونه وکړل. دوی په دې کلمو سره غوښتل په پېغمبر ﷺ احسان بار کړي او په عین حال کې سوغاتونه او ډالۍ ترلاسه کړي. په دې وخت کې د الحجرات سورت آخري مبارک آیتونه د دوی په هکله نازل شول او امر یې وکړ چې د اسلام راوړلو په دعوه پر پېغمبر ﷺ باندې احسان مه باروئ، بلکې که تاسو په خپله دعوه کې رښتیني یاست باید د پروردګار د احسان منه وکړئ چې تاسو یې د ایمان او اسلام په نعمت مشرف وګرځولئ. مبارکو آیتونو د دوی پټ نیتونه ښکاره کړل او د اسلام د پېغمبر ﷺ په ژبه یې دوی ته ښوونه وکړه چې یوازې په ژبه د ایمان دعوه ونه کړي، بلکې دا ایمان په زړونو تصدیق کړي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د الله د رسول د ټولو اوامرو او نواهیو په وړاندې تسلیم او غاړه کېږدي، ترڅو ایمان یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په وړاندې د قبول وړ شي.

دا مبارک آیت یو لوی اصل تثبیت او تأییدوي چې ډېر وختونه انسانان او حتی ځینې مؤمنان هم له هغه څخه غافل او بې پروا وي. په اصل کې لوی نعمت چې الله تعالی یې د ځمکې پر مخ په کوم بنده پیرزو کوي، د ایمان نعمت دی چې له ټولو نعمتونو څخه غوره او لوړ دی. د ایمان نعمت چې هرکله د انسان په زړه کې ځای ونیسي، نوبل هېڅ شی به له هغه څخه لوړ او ارزښتناک نه وي. انسان د ایمان په نعمت سره له خپل اصل او مبدأ خبرېږي او له خپل پیداکوونکي او پالونکي سره اړیکې پیدا کوي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

په دې لوست کې ګټې او لارښوونې په لاندې ډول دي.

- ❖ د ټولو انسانانو پیدایښت یو واحد اصل(آدم عليه السلام) ته راګرځي.
- ❖ په نسب او نژاد ویاړ کول حرام دي.
- ❖ انساني توپیرونه د پېژندنې او له یو بل سره د مرستې لپاره دي، نه دا چې یو پر بل غوره والی رامنځته کړي.
- ❖ د انسانانو په منځ کې د غوره والي او عزت معیار تقوا ده.
- ❖ له عملي مخالفت سره په ژبه د ایمان ښرګندونه اسلام ته د قبول وړ نه ده.
- ❖ ایمان د اسلام په پرتله خاص دی.
- ❖ د توکم، ژبې، سیمې او سمت پر بنسټ د انسانانو تر منځ توپیر کول حرام دي.




١. قرآن کریم د انسانانو د پیدایښت اصل څرنګهویني؟ په قرآني آیت استدلال وکړئ.
٢. د انسانانو ترمنځ توپیر او اختلاف او په قبیلو او ډلو د دوی وېش څه فایده لري؟
٣. د غوره والي او بهترۍ معیار د قرآن کریم له نظره څه شی دی؟ د قرآني آیت په رڼا کې یې واضح کړئ؟
٤. په نسب، توکم او ژبې ویاړ کول د اسلام له نظره څه حکم لري؟ په آیتونو او نبوي احادیثو یې واضح کړئ.
٥. کومې قبیلې د خپل اسلام راوړلو احسان په پیغمبرﷺ باندې اچولو او د قرآن ځواب دوی ته څه و؟
٦. د ایمان او اسلام ترمنځ توپیر څه دی؟




د انساني مساوات اصل او د انسانانو ترمنځ د غوره والي معیار په نظر کې ونیسئ او په دې هکله یوه مقاله ولیکئ.

اووه لسم لوست

# د الله جل جلاله د خاصو بندګانو صفتونه

قال الله تعالی: ﴿وَعِبَادُ الرَّحْمَنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا۝ وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا۝ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا۝ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا۝ وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَوَامًا﴾ [الفرقان: ۶۳-۶۷]

**د ځینو کلمو معناوې**

هَوْنًا: په عزت او آرامتیا.

قَالُوا سَلَامًا: روغه خبره او له ګناه څخه منع کوونکې.

سُجَّدًا وَقِيَامًا: سجده کوونکي، په تهجد لمانځه کې درېدونکي.

غَرَامًا: پیوست او ملګری.

سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا: بد اوناوړه استوګنځی.

لَمْ يُسْرِفُوا: اسراف اوله حده تېریدنه یې ونه کړه.

لَمْ يَقْتُرُوا: تنګي یې ونه کړه، بخل یې ونه کړ.

قَوَامًا: اعتدال د اسراف او بخل ترمنځ.

**ژباړه**

د رحمان ذات اصلي بندګان هغه دي چې پر ځمکه باندې آرام ځي او که جاهلان يې مخې ته راشي ، نو وایي تاسې ته سلام.

هغه کسان چې د خپل پروردګار په وړاندې په سجدو او قیام شپې تېروي.

هغه کسان چې دعاګانې کوي چې ای زموږ پروردګاره! موږ د دوزخ له عذابه وساته! بېشکه دهغه عذاب راپسې کېدونکی دی.

هغه ډېر ناکاره استوګنځی او ځای دی.

هغه کسان چې کله لګښت کوي، نو نه بې ځایه لګښت کوي اونه بخیلي کوي، بلکې دهغو لګښت د دغو دواړو سرحدونو په منځ کې په منځلاریتوب ولاړ وي.

**تفسير**

**د الله جل جلاله د خاصو بندګانو صفتونه**

کله چې پېغمبر ﷺ مشرکان د رحمان خدای جل جلاله عبادت ته راوبلل، نو هغوی په انکار او جاهلانه توګه پوښتنه وکړه، رحمان څوک دی؟ الله تعالی په دې مبارکو آيتونو کې خپل خاص بندګان د« رحمان د بندګانو» په نامه وستايل او د دوی صفتونه يې وشمېرل، ترڅو د هغو په واسطه رحمان خدای جل جلاله ښه وپېژندل شي. په دې مبارکو آيتونو کې الله تعالی مؤمنانوته، چې دوی يې خپل ځان ته منسوب کړل، د ﴿ عِبَادُ الرَّحْمَنِ ﴾ د عزت او غوره والي مقام وباښه.

دې مبارکو آيتونو د سورت تر پايه د الله جل جلاله خاص بندګان په اتو مبارکو صفتونو ستايلي دي. د الله جل جلاله د دې خاصو بندګانو صفتونه د دوی له نفسونوسره، د دوی له پروردګار سره، له ټولنې سره او د ټولنې له پاکې او پرمختګ سره چې دوی په کې ژوند کوي تړاو لري. په دې ترتيب ټول هغه صفتونه چې مبارکو آيتونو د رحمن ذات د خاصو بندګانو لپاره بيان کړي دي په څلورو محورونو کې خلاصه شوي دي.

ددې صفتونو يوه برخه په ديني او ايماني کمالاتو پورې اړه لري چې مؤمنان په دې کمالاتو ستايل شوي او په ﴿ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا ﴾ مبارک آيت کې ليدل کيږي.

دويمه برخه د مشرکانو او فاسقانو ناوړه او د ګمراهۍ صفتونه راښيي چې مؤمنان بايد له هغو ځخه ځان وژغوري او دا صفتونه په﴿وَالذِيْنَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللهِ إلهاً آخَر..﴾ اوپه نورو وروستيو آيتونوکې ليدل کيږي.

ددې صفتونو يوه بله برخه د اسلام له لارښوونو څخه عبارت ده چې رښتيني مؤمنان بايد په هغو عمل وکړي او لازم يې وګڼي چې هغه: ﴿ وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا﴾ او ﴿ وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا﴾ او د سورت نور آيتونو دي.

د دې غوره او نيکو صفتونو بله برخه د ژوند د حالت سمون او ښه کول دي چې مؤمنان يې د الله جل جلاله له درباره غواړي، ترڅو الله جل جلاله يې ورپيرزو کړي چې دا مبارک آيتونه ﴿وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا﴾ يې رانغاړي.

**له خلکو سره ښه چال چلند**

د رحمان ذات د خاصو بندګانو له صفتونو څخه دا دي چې کله د ځمکې پر مخ روان وي، نو په خاکسارۍ او تواضع سره ځي﴿الذين يمشون على الأرض هوناً﴾. هدف دا چې د متکبرو، مغرورو، بدکارو او مفسدینو په څیر په لاره نه درومي، بلکې په آرام، عزت او تواضع ګرځي، هو! په لاره تلل د انسان شخصیت څرګندوي، لکه: چې الله تعالی په قرآن کریم کې فرمايي: ﴿وَلاَ تَمْشِ فِي الأرض مَرَحاً إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ الأرض وَلَن تَبْلُغَ الجبال طُولاً﴾ [الإسراء: ۳۷] یعنې: د ځمکې پر مخ په ناز، ویاړ اونخرو مه ځه! یقیناً ته نه په خپل قدم ځمکه شکولی شې اونه په لوړوالي کې غرونوته رسیدای شې. البته پر لارې له درونډ تګ څخه دا مطلب نه دی چې سړی د عجز او کمزورۍ او یا د تظاهر په ډول پر لاره لاړ شي، پیغمبرﷺ چې کله پر لاره تللو داسې به معلومېده چې ځمکه یې تر پښو لاندې کش کیږي. همدارنګه عمربن خطابرضي الله عنه یوځوان ولید چې ډیر نرم او په مات زړه پر لاره روان دی، نوله هغه څخه یې پوښتنه وکړه: په تاڅه شوي دي؟ آیا ناروغ یې ؟ ځوان وویل نه، نو دغه وخت حضرت عمررضي الله عنه هغه ځوان پر دُره وواهه او ده ته یې امر وکړ چې پر لاره ښه تکړه او جګ جګ ولاړشي[۱]. اسلام دعزت او قوت دین دی اوعزت او قوت له تکبر سره توپیر لري، لکه: څرنګه چې په غرور او تکبر پر لاره تلل حرام او ناوړه کار دی په همدې توګه په کمزورۍ، ستومانۍ او تظاهر تګ هم د اسلام له نظره بد او د منلو وړ نه دی.

همدارنګه دا د رحمان ذات بندګان چې کله په خپلو معاملو کې له ناپوهو او جاهلانو سره مخامخ کیږي له هغوی سره په بالمثل چال چلند معامله نه کوي او بدۍ ته په بدۍ ځواب نه ورکوي، بلکې د سلام په ویلو او حکیمانه خبرو د دوی له شر څخه ځان په امن کې ساتي، البته نه د بیوسۍ او ویرې له امله، بلکې له دې امله چې وخت ضایع نشي او هسې په بې ګټې کار بوخت نشي، نو د داسې خلکو په خبرو دې سترګې پټې او غوږونه کاڼه کړي.

**فعالیت**

پر لارې د تکبر او غرور او یا تظاهر له مخې تګ په اړه په خپلو کې خبرې اترې وکړئ او له خپل چاپیریال، ماحول او ټولنې څخه څو نمونې وړاندې کړئ.

---

۱- التفسیرالوسیط للطنطاوی، تفسیر آیت ۶۳ سوره‌ء الفرقان.

**د رحمان پروردګار عبادت**

هغه څه چې وویل شول د الله تعالی د خاصو بندګانو صفتونه او په ورځنیو چارو کې د خلکو سره د هغوی د چلن په اړه وو، خو د شپې له خوا د الله ﷻ په دربار کې د دوی دنده د خپل پروردګار عبادت، دعا او هغه ذات ته زارۍ دي: ﴿وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّداً وَقِيَاماً﴾ د رحمان خدای ﷻ خاص بندګان هغه کسان دي چې د شپې څه برخه د سجدو او قیام په حال کې د خپل پالونکي په حضور کې تېروي، ځکه شپه د خشوع ښه وخت او بنده په کې له ریا څخه خوندي وي. بیا مبارك آیت د رحمان «الله» د خاصو بندګانو له دعاګانو څخه یوه ګوښه بیانوي او فرمايي: ﴿والذين يَقُولُونَ رَبَّنَا اصرف عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ﴾ پروردګاره! د جهنم له عذاب څخه مو وساته چې سخت هلاکوونکی او دردوونکی عذاب دی. دا خشوع، زارۍ او وېره د الله ﷻ د رښتینو بندګانو د ژور ایمان او تصدیق ثمره ده.

**په انفاق کې اعتدال او میانه روي**

د رحمان خدای ﷻ د خاصو بندګانو بل صفت، اعتدال او میانه روي ده چې له اسراف او بخل دواړو څخه پرهېز کوي او په منځنۍ لاره درومي: ﴿وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَوَامًا﴾. ځکه چې اسراف او بخل دواړه ناوړه خویونه دي او دواړه خویونه د وګړو او ټولنې د فساد لامل ګرځي. اسراف د افرادو او ټولنې د نفسونو او مالونو فاسدوونکی دی. همدا راز بخل او سختي د ټولنې د آبادۍ او سوکالۍ په لاره کې له مال څخه د ګټې د نه اخیستلو لامل ګرځي چې په دې توګه دواړه ناوړه صفتونه دي او په ټولنه کې د زیان او ستونزو د رامنځته کېدو لامل ګرځي. په مال لګولو کې اعتدال او میانه روي د هوښیارانو له ځانګړتیاوو او د ایمان له صفتونو څخه شمېرل کېږي چې ټولنې ته نیکمرغي، سوکالي او آرامي راولي.

دا یوه برخه د رحمان خدای ﷻ د خاصو بندګانو ځینې صفتونه دي چې قرآن کریم په پورتنیو مبارکو آیتونو او د دې سورت په وروستیو آیتونو کې ذکر کړي دي او د همدې نېکو صفتونو په خاطر قرآن کریم د الله ﷻ خاصو بندګانو ته د جنت د ډېرو لوړو درجو او تل پاتې نعمتونو زېرې ورکوي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

په دې لوست کې ګټې او لارښوونې په لاندې ډول دي:

❖ د رحمان خدای ﷻ د خاصو بندګانو د صفتونو بیان چې د دوی د صفتونو د پېژندنې په وسیله د رحمان پروردګار پېژندنه لازیاته حاصلیږي.

❖ په تګ کې د وقار، اطمینان او آرامۍ فضیلت.

❖ په نیکۍ سره د بدۍ د ځواب ورکولو فضیلت.

❖ په عبادت سره د شپې په ویښه تېرولو او د دوزخ له اوره د وېرې فضیلت.

❖ د الله ﷻ په لاره کې په اعتدال اومیانه روۍ سره د مال لګولو فضیلت او د اسراف او بخل دواړو ناوړو خویونو څخه ځان ساتل.




۱- دلاندې کلمو او لغاتو معناوې څرګندې کړئ:

(هَوْنًا- قَالُوا سَلَامًا- غَرَامًا- سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا- لَمْ يُسْرِفُوا- لَمْ يَقْتُرُوا- قَوَامًا)

۱. د لوست د آیتونو د نزول سبب او مناسبت شرحه کړئ؟

۲. دا چې په آیت کې د بندګانو نسبت رحمان ذات ته شوی، څه مفهوم افاده کوي؟

۳. په مبارک آیت کې په وقار او آرامۍ سره له تګ څخه مطلب څه دی؟ واضح یې کړئ.

٤. په ورځ او شپه کې د الله ﷻ د خاصو بندګانو صفت د مبارک آیت په رڼا کې شرحه کړئ.

٥. د الله ﷻ د خاصو بندګانو صفت په صدقه او نفقه کې څرنګه دی وضاحت ورکړئ.




د(الفرقان) سورت د وروستیو آیتونو په رڼاکې د الله ﷻ د خاصو بندګانو د صفتونو او اعمالو د نتیجې په هکله یوه مقاله ولیکئ.

اتلسم لوست

# د ټولنې په تهذیب کې د مؤمنانو ونډه

قـال الله تعـالی: ﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ۞ وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [النور: ۳۰-۳۱]

**د ځینو کلمو معناوې**

**يَغُضُّوا:** ټیټې کړي، ځان وساتي.

**أزكى لَهُمْ:** ډېره پاکه کړنلاره ده دوی ته.

**وَلاَ يُبْدِينَ:** نه دې ښکاره کوي.

**زِينَتَهُنَّ:** خپل ښایست.

**بِخُمُرِهِنَّ:** خمر د خمار جمع ده، هغې جامې ته ویل کیږي چې ښځې پرې خپل سر او ګریوان پټوي(پړونی).

**جُيُوبِهِنَّ:** جیوب د جیب جمع ده، جیب ګرېوان ته ویل کیږي.

**ژباړه**

ای پیغمبره! مؤمنانو ته ووایه چې خپلې سترګې ټیټې او د شرم ځایونه پټ وساتي. دا د هغوی لپاره ډېره پاکه کړنلاره ده. هغوی چې څه کوي الله ﷻ پرې خبر دی.

مؤمنو ښځو ته ووایه چې خپلې سترګې ټیټې وساتي او د خپلو شرم ځایونو ساتنه دې وکړي او خپل ښایست او سینګار (دزینت ځایونه) دې نه ښکاره کوي، مګر هغه چې په خپله څرګند شي او په خپلو ګرېوانونو دې خپل پوړني واچوي، هغوی دې خپل زینت او سینګار نه ښکاره کوي، مګر خپلو مېړونو، پلرونو، د مېړونو پلرونو، خپلو زامنو، د مېړونو زامنو(بنزیانو)، وروڼو، وریرونو، خوریونو، مؤمنو ښځو، خپلو مریانو، خپلو هغو ترلاس لاندې نارینه وو ته چې ښځو

ته حاجت ونه لري او هغه ماشومانو ته چې لا تراوسه پورې د ښځو له پټو خبرو سره اشنا شوي نه دي اوهغوی دې په ځمکه باندې په زوره په داسې شان تګ نه کوي چې دهغوی د پټ کړي سینګار خلکو ته معلومات وشي. ای مؤمنانو! تاسې ټول په ګډه الله ﷻ ته توبه وباسئ ښایي چې بری درپه برخه شي.

**تفسیر**

**نامحرمو ته له کتلو څخه ډډه کول**

د النور مبارک سورت له اخلاقي بې لاریو او ټولنیزو مفاسدو څخه د فرد، کورنۍ او ټولنې د ژغورنې په موخه ډېر احکام لري. الله ﷻ د النور سورت په لومړیو آیتونو کې زنا حرامه ګرځولې او د زنا مرتکب ته یې درنه جزا ټاکلې ده. په دې مبارکو آیتونو کې الله تعالی د وقایوي درملو په توګه سړیو اوښځو ته د سترګو په ټیټولو او نامحرمو ته په نه کتلو امر کړی دی چې د ګناهونو کندې ته له لویدلو څخه خوندي شي. اسلامي ټولنه له اخلاقي مفاسدو وژغورل شي او د تهذیب او پرمختګ په لاره ګامونه واخلي.

لکه: چې پوهېږو انسانان ګڼ حواس لري، چې د دې حواسو په وسیله مختلف شیان درک کوي، مثلا په غوږونو اوري، په پوزه شیان بویوي، په ژبه خبرې کوي او مزه څکي، خو تر ټولو مهم حس چې انسان جنسي خواهشاتو اوغرایزو ته ورکاږي، هغه د باصرې او لیدلو حس دی. له همدې امله الله پاک د وقایوي درمل په توګه سړي او ښځې مخاطب کړي، نارینه مؤمنانو ته یې د سترګو ښکته اچولو او مؤمنو ښځو ته یې د نه کتلو او د خپل ښایست د نه ښرګندولو امر کړی دی.

په مبارک آیت کې د سترګو په ښکته اچولو او د اندامونو د ساتلو په منځ کې جمع راغلې ده، ځکه کتل د فحشا یا زنا لامل کېږي، نو ځکه الله تعالی خپل پېغمبرﷺ ته امر وکړ مومنانو ته ووایي، چې پردیو ښځو ته ونه ګوري او همدارنګه خپل اندامونه په حرامو کې له واقع کېدو څخه وساتي. دا د ایمان د کمال دلیل دی او د زړونو او نفسونو د پاکۍ او د دنیا او آخرت د کامیابۍ او نېکمرغۍ سبب دی.

بیا الله تعالی خپل پېغمبرﷺ ته امر کړی مؤمنو ښځو ته ووایي، چې دوی هم پردیو سړیو ته ونه ګوري او خپل ښایست ښکاره نه کړي، مګر هغه څه چې عادتا له نا چارۍ ښکاره کېږي.

مفسرین وایي: که څه هم ښځې په غالبه توګه مؤمنانو ته په امر کې شاملې دي، خو بیا هم د ټینګار لپاره ښځې جلا مخاطبې شوې دي چې سترګې ښکته واچوي او خپل اندامونه پټ کړي.

بیا مبارك آیت مؤمنو او مسلمانو ښځو ته امر کړی چې خپل سرونه، غاړې او سینې په خپلو جامو پټې کړي، ترڅو پردیو سړیو ته ښکاره نشي او د دوی د زینت اوښایست ځایونو ته ونه ګوري. علماوو ویلي دي: د جاهلیت په زمانه کې ښځو خپل څادرونه د سر (تندي) له خوا شا ته اچول، چې په دې توګه به يې غاړې او غاړکۍ ښکاریدې، نو ځکه الله تعالی مؤمنې ښځې له دې طریقې څخه منع کړې. البته له زینت څخه په مبارك آیت کې هغه زینت مراد دی، چې باید پټ وساتل شي، لکه: ویښته، متې او پنډۍ.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه په خپل چاپېریال کې د سترګو ښکته نه اچولو څو نمونې تربحث لاندې ونیسي او منفي اړخونه دې څرګند کړي.

**د ښځو د زینت لیدنه کومو کسانوته جواز لري؟**

مؤمنو ښځو ته روا نه ده چې خپل پوښلی زینت خلکو ته ښکاره کړي، مګر هغه کسانو ته چې مبارك آیت استثنا کړه دي او هغه دولس ډلې دي. لومړي کسان چې د مؤمنو ښځو د زینت لیدل يې ورته روا کړي، مېړونه دي. مېړونو ته د ښځو هر ډول زینت لیدل روا دي، بلکې د مؤمنو ښځو زینت اصلا د مېړونو لپاره دی، نو د مېړونو لپاره د خپلو ښځو زینت او عورت لیدنه کوم ممانعت نه لري. همدارنګه مؤمنې ښځې د خپل عزت او وقار په رعایتولو کولای شي خپل زینت پرته له مېړونو څخه خپلو پلرونو، خسر، زامنو، بن زیو، ورونړو، ورېرونو او خوریونو ته ښکاره کړي. البته دا ذکر شوي اووه ډوله خلك له مېړه څخه وروسته هغه محارم دي چې مؤمنه ښځه ور سره نکاح نشي کولای او مؤمنې ښځې د ناچارۍ له وجې له دوی سره مجلسونه او ناسته پاسته لري او عادتا له فتنې څخه خوندي وي. بیا کاکا ګان، ماماګان او رضاعي محارم هم له دوی سره په حکم کې یو ځای کېږي. همدارنګه مؤمنې ښځې کولای شي خپل زینت مسلمانو ښځو او وینځو ته ښکاره کړي. همدارنګه هغو سړو ته يې هم ښکاره کولای شي چې د کورنۍ اتباع دي او د بوډاتوب یا نورو عواملو له وجې ښځو ته رغبت نه لري اود دوی په خدمت مشغولې دي یا هغه ماشومان چې د ښځو په عورتونو او محارمو خبر نه دي. هغو ته هم خپل زینت او ښایست ښکاره کولی شي. دا دولس ډوله خلك مجاز دي، ځکه د فتنې احتما ل پکې نشته، نوکه دوی د ښځو پوښلی زینت، لکه: سر، غاړې، پنډۍ او متو ته وګوري، باك نه لري.

**د زینت ښکاره کوونکو حرکتونو ممانعت**

وروستی مبارك آیت مؤمني اومسلماني ښځې له هغوحركتونو څخه چې پوښلی زينت ښكاره كوي، منع كړي دي. دوی ته يې امر كړی چې له كور څخه د وتلو په وخت كې خپل عزت، وقار، اسلامي آداب او اخلاق رعايت كړي، ترڅو د نورو نظر ځانته را جلب نه كړي، لكه څرنگه چې الله تعالى فرمايي: ﴿وَلاَ يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ﴾ يعنې پښه دې داسې په ځمكه نه وهي چې د پښو پټ زيورات يې معلوم شي. د دې مبارك آيت مراد دا دی چې مؤمنه ښځه بايد پر لارې د تگ په وخت كې داسې حركت يا عمل ونه كړي چې د نورو د پام را اړولو او د جنسی او شهواني غرايزو د تحريك سبب شي، لكه: پر لاره د ځان ښودنې تگ يا د عطرو استعمالول چې د نورو پام خپل لوري ته راواړوي او يا نور داسې حالتونه چې د خلكو د جنسي غريزو د تحريك سبب گرځي.

مبارك آيت په پای كې ټول مؤمنان خدایﷻ ته رجوع او توبې ته رابللي او امر ورته كوي: ﴿وتوبوا إِلَى الله جَمِيعاً أَيُّهَ المؤمنون لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ يعنې: ای مؤمنو او مسلمانو سړيو او ښځو! پرتاسې لازم دي چې ټول اللهﷻ ته توبه وباسئ، ترڅو كامياب شئ.

په دې مباركو آيتونو كې چې د حجاب او وقار ساتلو په اړه كومې خبرې يادې شوې، دا هغه وقايوي گامونه دي چې مسلمانه ټولنه له اخلاقي بې لارۍ څخه ژغوري. د شرعې له نظره ښځه او سړی دواړه مكلف دي چې د حيا او وقار مخالفو كارونو څخه ډډه وكړي. همدا راز سړي هم حق نه لري چې په ناسمو جامو كې د خلكو په منځ كې ښكاره شي، خو څرنگه چې حكيم خدای په ښځه كې زياته ښكلا او جاذبه پيدا كړې، چې د مخالف جنس يعنې سړو پام زيات ځان ته را اړوي، ځكه د ستر او پردې په اړه د ښځو مسؤوليت زيات دی او الله پاك په دې آيتونو كې پر ښځو پرده كول فرض كړي دي.

اسلام د فطرت د دين په توگه د ځينو منحرفو اديانو په څېر د انسان جنسي غريزه وژلې نه ده او نه انسان ته په رهبانيت امر كوي، له همدې امله يې خلك واده كولو ته هڅولي او يوازې واده يې د جنسي غريزې د اشباع كولو او د انساني نسل د بقا وسيله بللې ده.

هغه خلك چې له اخلاقو، حيا او پاكۍ څخه په خالي ټولنو كې د جسمي او روحي ناروغتياوو او اخلاقي بې لاريو د خپرېدو څخه خبر دي، ښه پوهېږي چې د حجاب په فرضيت كې د ټولنې لپاره څومره سترې گټې نغښتې دي.

**فعالیت** زده کوونکي دې د يوې مسلمانې ښځې د لباس اغوستلو او پر لاره تللو د مسؤولیت په هکله بحث او څېړنه وکړي او د حجاب د نه مرعاتولو پروخت دې د هغو منفي اغيزې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## ګټې او لارښوونې

دغه آيتونه ډېر احکام، آداب او لارښوونې لري، خو ځینې يې دا دي:

❖ د سترګو د نظر ښکته والی او له هر ډول حرامو څخه د اندامونو ساتنه، ځکه اسلام د يوې پاکې او شریفې ټولنې د رامنځ ته کیدو بلنه ورکړې ده او د انسان ټول غړي مسؤل ګڼي: ﴿إِنَّ السمع والبصر والفؤاد كُلُّ أولئك كَانَ عَنْهُ مَسْؤُولاً﴾.

❖ مؤمنې ښځې ته روا نه دي چې خپل زینت پرديو ته ښکاره کړي مګر هغه چې ښکاره وي، لکه: مخ، لاسونه او جامې.

❖ د هغې ډلې محارمو بیان، چې مؤمنه ښځه کولای شي خپل زینت ورته څرګند کړي.

❖ د مسلمانو ښځو د ښایست ښکاره کولو جواز د کورنۍ بوډاګانو، کم عقلو ساده ګانو او وړوهلکانو ته چې د زینت او عورت د تشخیص مرحلې ته نه وي رسیدلي.

❖ د سینګار ښکاره کولو په قصد پر ځمکه د پښو وهلو حرمت.

❖ د دنیا اوآخرت د کامیابۍ لپاره د توبې او د الله ﷻ دربار ته د رجوع واجبوالی.



### پوښتنې

۱. لاندې کلمې معنا کړئ:

(يَغُضُّواْ- أزكى لَهُمْ- وَلاَ يُبْدِينَ- بِخُمُرِهِنَّ- جُيُوبِهِنَّ:)

۱. د الله ﷻ د دې امر حکمت څه شی دی، چې مؤمنو سړيو او ښځو ته يې کړی چې خپل نظر او سترګې ښکته واچوي؟

۲. په قرآني خطاب کې مؤمن سړي او مؤمنې ښځې د کومو کارونو په سرته رسولو مامور شوي دي؟

۳. پرديو خلکو ته د ښځو د زینت له څرګندولو څخه مراد څه شی دی؟

٤. مبارك آيت کوم کسان د مؤمنو ښځو د زینت له لیدلو څخه استثنا کړي دي؟

٥. کومو هلکانو ته جواز شته چې د مؤمنو ښځو پوښلي زینت ته نظر وکړي؟

٦.د دې مبارک آیت ﴿وَلاَ يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ﴾ مقصد څه دی؟ له مثال سره یې څرگند کړئ؟




مؤمنو اومسلمانوسړیو او ښځو د کتلو د آدابو او د ټولنې پر اخلاقو او تهذیب د هغې د اغېزو په اړه یوه مقاله ولیکئ.

نولسم لوست

# په اسلام کې د معیوبو او فقیرو مؤمنانو مرتبه

قَــال الله تعــالى: ﴿عَبَسَ وَتَوَلَّى۞ أَنْ جَاءَهُ الْأَعْمَى ۞ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّى۞ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرَى۞ أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَى ۞ فَأَنْتَ لَهُ تَصَدَّى ۞ وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّى۞ وَأَمَّا مَنْ جَاءَكَ يَسْعَى۞ وَهُوَ يَخْشَى ۞ فَأَنْتَ عَنْهُ تَلَهَّى۞ كَلَّا إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ۞ فَمَنْ شَاءَ ذَكَرَهُ ۞ فِي صُحُفٍ مُكَرَّمَةٍ۞ مَرْفُوعَةٍ مُطَهَّرَةٍ۞ بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ۞ كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴾ [عبس: ۱-۱۶]

### د ځينو کلمو معناوې

| | |
|---|---|
| عَبَسَ: | تندى يې تريو کړ. |
| تَوَلَّى: | مخ يې وګرځاوه. |
| يَزَّكَّى: | له ګناهونو پاک شي. |
| يَذَّكَّر: | پند واخلي. نصيحت واوري. |
| اسْتَغْنَى: | بې پروا شو، له ايمان، دين او علم څخه يې مخ وګرځاوه. |
| تَصَدَّى: | توجه کوې. |
| تَلَهَّى: | په بل څه مشغولېږې. |
| كَلَّا: | داسې نه ده، بيا دې کار ته مه را ګرځه. |

### ژباړه

تندى يې تر يو شو او مخ يې وګرځاوه، په دې خبره چې هغه ړوند ورته راغی. ته څه خبرېږې. کېداى شي چې هغه پاک شي. يا نصيحت ته ځير شي او نصيحت هغه ته ګټه ورسوي. مګر کوم سړي چې بې پروايي غوره کړه. دهغه لوري ته خو تا پاملرنه وکړه. په داسې حال کې چې که هغه پاک نشي، نو پرتا يې څه ضمانت دى؟ او څوک چې په خپله تاته په منډه راغی او هغه وېرېده. له هغه سره تا بې پروايي وکړه. هېڅکله نه، دا خوږو نصيحت دى. د چا زړه چې غواړي هغه دې ومني. دا په داسې صحيفو کې نغښتې دى چې مبارکې دي. لوړه مرتبه لرونکې دي، پاکې دي. د عزتمندو پرښتو په لاسونو کې دي. د غوره او نيکو ليکونکو.

**د نازلېدلو سبب**

مفسرينو د مبارکو آيتونو د نزول په هکله څه روايتونه نقل کړي چې لنډيز يې په لاندې ډول دی: يوه ورځ رسول اللهﷺ د قريشو له يوې ډلې مشرانو، لکه: عتبه بن ربيعه، ابوجهل، عباس بن عبد المطلب، ابی بن خلف، شيبه بن ربيعه او وليد بن مغيره سره ناست و او دوی يې اسلام ته رابلل او د اسلام د مقدس دين لارښوونې يې دوی ته شرحه کولې. په دې وخت کې عبدالله بن ام مکتومؓ چې يو نابينا(ړوند) صحابي و او د اسلام د پيغمبرﷺ د مجلس په حالت نه پوهېد، مجلس ته راغی او ويې ويل: ای د الله رسوله! له هغه څه چې الله درښودلي ماته يې وښيه اوماته تعليم راکړه. عبدالله بن ام مکتوم خپله غوښتنه څو،څو ځله تکرار کړه. رسول اللهﷺ ورځخه مخ واړاوه او د قريشو د مشرانو په دعوت او بلنه مشغول و او د دې نابينا صحابي خبروته يې پاملرنه ونه کړه. په دې وخت کې مبارك آيتونه نازل شول او الله تعالی خپل پيغمبر د ملامتيا مورد وګرځاوه.

**عبدالله ابن ام مکتوم څوك و؟**

اصلي نوم يې عمرو بن قيس او ام مکتوم يې کنيه او لقب و، مور يې عاتکه بنت عبدالله مخزومي وه. عبد الله ابن ام مکتوم د رسول اللهﷺ د مېرمنې بي بي خديجې بنت خويلد د ماما زوی و.

هغه له لومړنيو مهاجرو څخه دی. عبد الله ابن ام مکتوم او بلال د رسول اللهﷺ له مؤذنانو څخه وو. رسول اللهﷺ ته ډېر ګران و او ديارلس ځله يې په مدينه منوره کې د خپل ځان خليفه ټاکلی دی. دا جليل القدر صحابي، سره له دې چې ړوند و، په غزاګانو کې يې برخه اخيستې ده. روايت شوی چې دی د عمربن الخطابؓ په خلافت کې د قادسيې په جنګ کې د مدائن د فتحې په مهال د شهادت لوړې درجې ته ورسيد.

**تفسير**

**اسماني او ځمکني معيارونه**

د العبس سورت په لومړيو مبارکو آيتونو کې الله تعالی د يوې شخصي پېښې په بڼه يوه لويه لارښوونه، يو مهم اصل او مبدأ بيان کړي چې دا اصل په خپل ذات کې نه يوازې د اسلام حقيقت، بلکې د اسلام يوه لويه معجزه راښيي. يوه داسې معجزه چې انسانان په ديني اسماني معيارونو او ارزښتونو ارزول کېږي، نه په ځمکنيو بشري تلو او معيارونو. داسې حقيقت چې الله تعالی حتی خپل غوره کړای شوی محبوب او دوست د دې حقيقت په هکله تر ملامتيا

لاندې ونيو او د ده ستر شخصيت ته يې لارښوونه وکړه. دا الهي حقيقت يوازې د تقوی په اساس د انسانانو د ارزولو او تللو معيار دی چې له ځمکنيو او انساني ارزولو سره بشپړ توپير لري﴿إن أكرمكم عند الله أتقاكم﴾.

**په اسلام کې د فقيرانو اوبېوزلانو مرتبه**

د سورت په پيل کې د حکايت په ژبه او په غايبه صيغه د موضوع مطرح کول په دې دلالت کوي چې الله تعالی په خپل رسول باندې مهرباني، لطف او مرحمت درلود، نودی يې مخاطب نه کړ، لکه: څرنګه چې د عبد الله ابن ام مکتوم ذکر د ړانده {الأعمی} په صيغه د ده د شان د کمي لپاره نه دی بلکې د ده د پېژندنې او همدارنګه د ده د معذور ګڼلو لپاره دی چې د رسول اللهﷺ حالت اومشغولتيا يې نه وه درک کړې. کله چې دا ړوند صحابي د رسول اللهﷺ حضور ته راغی او په تکرار يې له ده څخه د لارښوونې غوښتنه وکړه، رسول اللهﷺ په تريو تندي له ده څخه مخ واړاوه او د قريشو د مشرانو په بلنه مشغول شو، نو په دې توګه د الله تعالی د ملامتيا مورد وګرځيد، چې نه ښايي د بېوزلۍ او فقر او يا د نه ليدو په خاطر له ده څخه مخ وګرځول شي، ځکه هغه په پاک او ويښ زړه دعلم او پوهې په لټه کې و، ترڅو خپل نفس پاک کړي.

خو دوی (د قريشو سرداران ) چې د ايمان او نبوي لارښوونو څخه بې پروايي کوي ته دوی ته پاملرنه کوې او د دوی د هدايت لپاره زيار باسې. حال داچې په کفر او ګمراهۍ کې پاتې کېدل د همدوی په ضرر دي او ته پرې مسؤول نه يې. ستا دنده يوازې رسَول(بلاغ) دي او د دوی ستينده او حساب پرموږ دی او هدايت يې د اللهﷻ په لاس کې دی: **قال تعالی:** ﴿إِنَّكَ لاَ تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ ولكن الله يَهْدِي مَن يَشَآءُ﴾. [القصص: ٥٦ ]ترجمه: «ای پېغمبره! ته چې چاته وغواړې او خوښ دې وي هغه ته هدايت نشې ورکولای، مګر اللهﷻ چې چاته وغواړي هدايت کوي.»

بيا وروسته د آيتونو د عتاب او ملامتيا لهجه سخته شوې او پيغمبرﷺ ته يې داسې خطاب کړی: خو هغه کس چې له ړوندوالي او ستونزو سره په اخلاص، محبت او د اللهﷻ له وېرې ستا لوري ته په منډه راځي، ترڅو علم اوپوهه حاصله کړي او خپل دين کامل کړي، ته له هغه څخه مخ اړوې او خپله ټوله پاملرنه د قريشو مشرانو ته را اړوې چې ايمان راوړي. ای زما ګرانه استازيه ! داسې کار وړ او مناسب نه دی، بلکې دا قرآني آيتونه د پند او عبرت لپاره دي

چې هرڅوك وغواړي پند ترې اخلي. الهي آيتونه په عزتمنو صحيفو کې ليکل شوي دي چې د ا صحيفې ډېرې پاکې او لوړې مرتبې لري او د مقربو عالي رتبه پرښتو په لاسونو کې دي چې د درناوي ځخه برخمنې او د هرمغرض او ناشکره له ضرر څخه خوندي دي.

**د فضيلت اوغوره والي معيار**

مبارکو آيتونو د انسانانو ترمنځ د بهترۍ او غوره والي معيار ايمان اوتقوا ګڼلې، سره له دې چې رسول اللهﷺ اسلام ته د قريشو د مشرانو د بلنې له امله، چې هغه مهال د دعوت د لارې خنډ وو، د عبدالله بن ام مکتوم پوښتنو ته پاملرنه ونه کړه، په دې هيله چې د قريشو مشران د اسلام دين ته را وګرځي. بياهم الله تعالی خپل رسول د عتاب مورد ګرځوي چې د خدایﷻ په وړاندې مقبول ارزښتونه دين، ايمان او تقوی ده، نه هغه مادي ارزښتونه چې د انسانانو په وړاندې پيژندل شوي دي.

له همدې امله د اسلام خوږ پيغمبرﷺ د دې آيتونو له نازليدو وروسته هميشه د عبد الله بن ام مکتوم عزت او درناوی کاوه او هرکله به چې له هغه سره مخامخ کيده خپل څادر به يې ده ته د کيناستو لپاره غوړاوه او فرمايل به يې: "مرحبا بمن عاتبنی فيه ربی»

يعني: ښه راغلاست دې وي هغه چا ته چې د هغه په سبب الله تعالی زه ملامت کړی يم. په دې توګه د الله پيغمبرﷺ ټول دنيوي معيارونه يو په بل پسې له منځه يوړل او د ژوند په ټولو چارو کې يې فضيلت اوتقوی دغوره والي معيار وګرځاوه. په داسې توګه چې له هجرت څخه وروسته يې د مسلمانانو ترمنځ "مواخات" يعنې وروررګلوي قايمه کړه او خپل تره، حضرت حمزه بن عبدالمطلب اوخپل آزاد شوی غلام، زيدبن حارثه يې ورونه وګرځول، لکه: څرنګه چې يې د خالدبن رويحه خثعمي او حبشي بلال ترمنځ وروګلوي قايمه کړه. زيد بن حارثه آزاد شوی غلام يې د "مؤته" په جنګ کې په داسې حا ل کې د درې زريز لښکر قوماندان وټاکه چې د خالدبن وليد په شمول د مهاجرينو او انصارو يو زيات شمېر مشران د ده تر قيادت لاندې وو. په دې جنګ کې زيد بن حارثه د امير په توګه وټاکل شو. بيا د ده له شهادت څخه وروسته جعفر بن ابي طالب او بيا عبد الله بن رواحه انصاری په ترتيب سره د لښکرقوماندانې په غاړه واخيسته. همدارنګه د اسلام خوږ پيغمبرﷺ د ژوند په وروستيو ورځوکې اسامه د زيد بن حارثه اتلس کلن ځوان زوی رضي الله عنهما له روميانو سره په جنګ کې د اسلام د لښکر قوماندان وټاکه او لوی لوی شخصيتونه، لکه: ابوبکر صديق، عمرفاروق، سعد بن ابي وقاص اوداسې نورو په دې لښکر کې حضور درلود. همدارنګه

د اسلام پیغمبرﷺ د سلمان فارسي په هکله اعلان وکړ: "**سلمان منا أهل البيت**" یعنې سلمان زما د اهل بیت څخه دی.

دا او لسګونې نورې واقعې د مسلمانانو د برابرۍ او د ایمان او تقوی له مخې د ارزښت او غوره والي نمونې دي، چې د اسلام پیغمبر او راشدو خلفاوو او اصحابو کرامو پلې کړې دي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

❖ د فضیلت اوغوره والي اساس او معیار ایما ن او تقوی ده.

❖ په دې آیتونو کې د پروردګار په نزد د نبي کریمﷺ مقام اومرتبه بیان شوې ده او الله تعالی په خپل غوره شوي رسول د غایب په صیغه ملامتیا ویلې ده.

❖ د نبوت د عالي ادب بیان، له دې واقعې وروسته به چې کله عبد الله بن ام مکتوم د رسول اللهﷺ حضورته تشریف راوړ، هغه به ورته ځای چمتو کاوه او خپل مبارك څادر به یې د هغه د کیناستلو لپاره غوړولو او د هغه درناوی به یې کاوه.

❖ پیغمبرﷺ د الهي وحې د تبلیغ امین و. ام المومنین عایشې رضی الله عنها فرمایلي دي: که چېرې د الله رسول له وحې څخه څه پټولی ، نو پرځان به یې الهي ملامتیا د العبس په سورت کې پټه کړې وای.




۱. د لاندې کلمو معنا واضحه کړئ:
(عَبَسَ- تَوَلَّٰى- يَزَّكَّىٰ- يَذَّكَّر- اسْتَغْنَىٰ- تَصَدَّىٰ- تَلَهَّىٰ)

۲. د العبس سورت د لومړنیو آیتونو د نزول لامل په لنډه توګه واضح کړئ.

۳. عبدالله بن ام مکتوم څوك و؟

٤. پیغمبرﷺ د عبد الله بن ام مکتوم پوښتنو ته ولې ځواب ور نه کړ او له ده څخه یې مخ وګرځاوه؟

۵. له دې واقعې وروسته پیغمبرﷺ له عبدالله بن ام مکتوم سره څرنګه چلن کاوه او څه به یې ورته ویل؟

٦. د عبس سورت د آیتونو د نازلیدو واقعه د اسلام په مقدس دین کې کوم اصل ثابتوي؟

۷. د مسلمانانو ترمنځ مساوات او د غوره والي معیار د تقوا پر اساس دی، د دې اصل د پلي کېدو څو نمونې د اسلام له تاریخ څخه بیان کړئ؟

# د مؤمنانو يووالی

قال الله تعالي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوكُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ كَافِرِينَ ۞ وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ وَأَنْتُمْ تُتْلَى عَلَيْكُمْ آيَاتُ اللَّهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُ وَمَنْ يَعْتَصِمْ بِاللَّهِ فَقَدْ هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ۞ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ۞ وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنْتُمْ عَلَى شَفَا حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۞ وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۞ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ [آل عمران: ۱۰۰-۱۰۵]

### د ځينو کلمو معناوې

فَرِيقًا: طايفه، ډله

يَرُدُّوكُمْ: بېرته ګرځوي تاسې.

يَعْتَصِمْ: په قوت سره منګولې نښلوي

حَقَّ تُقَاتِهِ: حقيقي تقوا، د الله ﷻ په اوامرو اونواهيو کې خپل وس لګوي.

بِحَبْلِ اللَّهِ: د خدای ﷻ په رسۍ يعنې قرآن او اسلام.

شَفَا حُفْرَةٍ: د ژور ځای (کندې) غاړه او څنډه چې سړی په لږ غفلت کولو سره پکې لوېږي.

### ژباړه

ای مؤمنانو، که تاسې ددې اهل کتابو ديوې ډلې خبره ومنئ، نو دوی به تاسې له ايمان نه بېرته دکفر لورې ته واړوي، ستاسې لپاره دکفر لورې ته دراتګ اوس څه ځای پاتې دی چې تاسې ته د الله ﷻ آيتونه لوستل کيږي اوستاسې په منځ کې دهغه رسول ﷺ موجود دی؟ څوک چې د الله ددين لمنه کلکه ونيسي، هغه به هرومرو سمه لار ومومي.

ای مؤمنانو له الله ﷻ نه داسې وويرېږئ، لکه: څرنګه چې له هغه څخه د ويريدو حق دی، تاسې ته دې مرګ رانشي مګر په داسې حال کې چې مسلمان اوسئ.

ټول يوځای د الله ﷻ رسۍ کلکه ونيسئ او تيت پرک کيږئ مه، د الله ﷻ هغه پېرزوينه درياده کړئ چې تاسې يود بل دښمنان وئ، هغه ستاسې په زړونو کې مينه واچوله او د هغه په مهرباني

او لورينه تاسي سره ورونه شوئ، تاسي يوې له اوره ډکې کندې پر غاړه ولاړ وئ، الله تاسې ور څخه وژغورلئ، په دغه شان الله ﷻ خپلې نښانې تاسې ته څرګندوي چې په سمه لاره شئ.
په تاسې کې بايد څه خلك هرومرو داسې وي چې د نيکۍ لورې ته بلنه، په ښو امر او له بدو منع وکړي. کوم خلك چې دا کار کوي همدوی برياليي دي.
او تاسې د هغو خلکو غوندې نشئ چې په ډلو ووېشل شول او له روښانه او څرګندو لارښوونو ميندلو نه وروسته په شخړو کې اخته شول او د همدوی لپاره ستر عذاب دی.

**د نازلېدلو سبب**

مفسرينو کرامو ويلي دي چې ذکر شوې مبارك آيتونه د دوو تنو مسلمانو انصارو په باره کې نازل شوي دي چې يو يې اوس بن قيظی د اوس له قبيلې څخه او بل يې جبار بن صخر د خزرج له قبيلې څخه و. د دوی د واقعې لنډيز داسې دی: يوه ورځ د اوس او خزرج د انصارو مسلمانانو يوه ډله خلك په مدينه منوره کې د مينې او محبت په فضا کې په خبرو مشغول وو. په دې وخت کې د يهودو يو بوډا سړی د شاس بن قيس په نامه پردوی تېرېده. شاس چې د اسلام او مسلمانانو په نسبت يې ډېره بدبيني او کرکه درلوده، نو د دې ډلې مسلمانانو ترمنځ مينې او محبت لا ډېر کرکجن او غوسه کړ او داسې انګېرله چې که دا مينه او محبت د مسلمانانو ترمنځ دوام ومومي، نو زموږ سوکالي به له خطر سره مخ شي. په دې وجه ده يوه ځوان يهودي ته امر وکړ چې د مسلمانانو ډلې ته ورشي او د اوس او خزرج ترمنځ د پخوانيو جنګونو خبرې رامنځ ته کړي او د بعاث له جنګه څو شعرونه زمزمه کړي. ځوان يهودي د ده د امر موافق عمل وکړ او وتوانيده چې د انصارو د محبت او مينې ډك مجلس د عصبيت او تربګنۍ او د اوس او خزرج ترمنځ په فخر او وياړنو او يو په بل ځان غوره ګڼلو بدل کړي. په نتيجه کې دواړو قومونو تورې راوايستې او جګړې ته چمتو شول. په دې وخت کې د اسلام پيغمبر ﷺ ته خبر ورسيد. هغه له يوې ډلې مهاجرو صحابه وو سره راغی او دوی ته يې داسې خطاب وکړ: ای د مسلمانانو ټوليه! له الله ﷻ څخه ووېرېږئ! آيا په داسې حال کې چې زه ستاسو په منځ کې موجود يم، تاسو د جاهليت شعارونو ته مخه کوئ؟ وروسته له دې چې الله ﷻ تاسې ته د اسلام هدايت در په برخه کړ او په هغه سره يې تاسو ته عزت درکړ او جهالت يې درڅخه لرې کړ، له کفر څخه يې وژغورلئ او ستاسو ترمنځ يې مينه او محبت پيدا کړ. ددې اغېزناکو خبرو په اورېدو ټولو وسله پر ځمکه وغورځوله، په ژړا او زاريو يې يو بل په غېږ کې ونيول او له پيغمبر ﷺ سره خپلو کورونو ته ولاړل. په دې توګه يې د الله ﷻ د دښمن شاس فتنه او دسيسه شنډه کړه او دا مبارك آيتونه نازل شول چې دا ورځ په (بدترين پيل او بهترين پای) ونومول شوه[1].

---

۱– التفسير الوسيط للطنطاوی ، تفسيرآيت ۱۰۲ سورهء آل عمران.

**تفسير**

**د دښمن له دسيسو او تدبيرونو څخه خبرتيا**

په دې مبارکو آيتونو کې الله تعالی مومنانو ته خطاب کوي چې هرکله تاسې د اهل کتابو ځينو خبرو او غوښتنو ته غوږ ونيسئ او هغو ته تسليم شئ، نونه يوازې ستاسې ترمنځ تفرقه او دښمني پيدا کوي بلکې زيار باسي چې تاسې له ايمان څخه بېرته کفر ته وګرځوي.

بيا قرآن کريم بيانوي چې اصلا د مؤمن لپاره معقوله او ښه خبره نه ده چې له داسې ډلو ټپلو څخه پيروي وکړي، يا دا چې پس له ايمانه کافر شي او له يووالي وروسته اختلافاتو او بې اتفاقيو ته لمن ووهي. مبارکو آيتونو د انکار په صيغه بيان کړی چې څرنګه ممکنه ده تاسو مؤمنان داسې کارته اقدام وکړئ؟ په داسې حال کې چې د الله ﷻ آيتونه نوي او تازه تاسو ته نازلېږي او د الله ﷻ رسول ستاسو په منځ کې شتون لري چې که چېرې په غلطه لاره ولاړ شئ د حق لارې ته مو راګرځوي او ستاسو شکونه او شبهې له منځه وړي.

وروستيو آيتونو لارښوونه کړې چې د پيغمبر ﷺ له رحلت څخه وروسته د يهودو او نورو دښمنانو له مکرونو او چلونو څخه د ځان ژغورنې يوازنۍ وسيله الله تعالی ته ستنيدنه، په هغه توکل او د هغه په دين منګولې لګول دي چې انحراف او کوږوالی پکې نشته ﴿وَمَن يَعْتَصِم بِاللهِ فَقَدْ هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾. په دې مبارک آيت کې دې ته اشاره ده کومو مؤمنانو چې پيغمبر ﷺ نه وي ليدلی، هر کله چې د الله ﷻ په دين او کتاب منګولې ولګوي او په هغه ځان ملزم وګڼي، نو د دښمنانو له چلونو او غولونو څخه به په امن کې وي. له دې امله الله تعالی بياهم مؤمنانو ته امرکوي چې خاص له الله تعالی څخه ووېرېږي او د اسلام د دين پابند واوسي او ترمرګه د اسلام له دين او ملت څخه پرته بل دين او ملت ته مخه ونه کړي.

**د خلاصون او کاميابۍ رسۍ**

وروسته له دې چې قرآني آيتونو مؤمنانو ته د تقوا او د الله ﷻ د وېرې او د الله ﷻ د امر منلو او پيروۍ کې د ژوند تېرولو امر وکړ، دوی يې په اسلام او قرآن باندې التزام کولو او په هغه باندې منګولو ښخولو ته راوبلل، فرمايي: ﴿واعتصموا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعاً وَلاَ تَفَرَّقُواْ﴾ يعنی ټول د الله ﷻ په رسۍ منګولې ښخې کړئ او په خورو ورو لارو مه درومئ. د حبل(رسۍ) کلمه هغه وسيله ده چې د هغې ټينګ نيول د پورته کېدو او ښکته کېدو، له غرقېدو څخه د ژغورنې او نورو موخو د لاس ته راوړلو لپاره کارول کيږي.

دلته د الله ﷻ له رسۍ څخه مراد د الله ﷻ دين، د الله ﷻ ژمنه او د الله ﷻ کتاب دی چې په هر يوه منګولې ټينګول انسان خلاصون او بريا ته رسوي. په دې مبارک آيت کې د مؤمنانو يووالی او د الله ﷻ په دين او کتاب باندې منګولې لګول د هغې ډلې سره تشبيه شوي دي چې

په یوې قوي او ټینګه رسۍ پې منګولې لګولې وي او له هر ډول خطر، غورځېدو، غرقیدو او هلاکت څخه خوندي او په امن کې وي.

امام فخرالدین رازي ددې آیت په تفسیر کې فرمایي: که څوك په یوه نرۍ لار حرکت کوي اوله ښویېدو او غورځېدو څخه وېرېږي، نو د ناچارۍ له وجې په یوه داسې رسۍ منګولې نښلوي چې له دواړو خواوو څخه ټینګه تړل شوې وي، ترڅو خپل ځان خوندي وساتي. د حق لاره نرۍ او باریکه ده او ډېر خلګ ورڅخه پښې ښوییږي، نو هر څا چې د الله ﷻ په ښو او لارښوونو منګولې ټینګې کړې، ځان یې د ښویېدو او غورځېدو له خطر څخه خوندي کړ[1].

بیا قرآني آیتونو مؤمنانو ته د یووالي، مینې، محبت، او ایماني وروګلوۍ د نعمت په یادولو امر کړی چې تاسو مخکې له اسلامه یو د بل دښمنان وئ او یو د بل په له منځه وړلو بوخت وئ، خو د الله تعالی فضل او مهرباني پرتاسو وشوه او په تاسوکې یې اسلامي ورورولي، مینه، محبت، دوستي او مرسته پیدا کړه، نو باید د دې لوی نعمت شکر په ځای کړئ.

## د لوست ګټې او لارښوونې

❖ د مخکیني لوست په آیتونوکې الله تعالی پیغمبرﷺ ته امر وکړ چې یهودو ته خطاب وکړي خو په دې آیتونو کې یې مؤمنان په خپله مخاطب کړل چې دا کار د مؤمنانو په قدر او عزت دلالت کوي.

❖ په مبارك آیت کې یې د مسلمانانو ترمنځ په تفرقه او دسیسه پیدا کولو کې د اهل کتابو یوه ډله یاده کړه، ترڅو ټول اهل کتاب په دې کار کې شامل نشي. دا کار په خپله د قرآن کریم د آیتونو په حقانیت او انصاف دلالت کوي.

❖ مبارك آیتونه د مؤمنانو په قدر او درناوي او د فتنه اچوونکو یهودو په نا امیدۍ دلالت کوي او داېې واضحه کړې چې، ترڅو د الله ﷻ کتاب او د هغه پیغمبرﷺ د مسلمانانو په منځ کې موجود وي، دوی نشي کولای خپلو ناوړو غوښتنو ته ورسیږي.

❖ د یهودو او نصاراوو پیروي او امر منته او د دوی د مشرانو په پلانونو عمل کول مسلمانان کفر ته راکاږي، نو مسلمانان باید ځان د دوی له دسیسو څخه وساتي.

❖ خلاصون او کامیابي د الله ﷻ په کتاب او د رسولﷺ په سنتو باندې په منګولو لګولو او پابندۍ کې نغښتې ده، نوهرڅوك چې پرهغو منګولې ټینګې کړي له ګمراهۍ او هلاکت څخه نجات مومي.

❖ د اسلام په دین منګولې ټینګول او ځان د هغه په احکامو پابند ګڼل واجب او اختلاف او تفرق حرام دی.

---

۱- تفسیر مفاتیح الغیب ( تفسیر کبیر) ج۸ /۱۷۷.

❖ د شرك او گناهونو ارتكاب انسان د جهنم كندې ته غورځوي، كه څوك په دې حالت كې ومري د الله ﷻ په حكم او فيصله حتماً جهنم ته داخليږي.

❖ له اسلامي امت څخه د يوې داسې ډلې شتون چې نور خلك او ملتونه اسلام ته راوبولي او د اسلام د دښمنانو په وړاندې د الله ﷻ د دين له حريم څخه دفاع وكړي او د امربالمعروف او نهی عن المنكر فريضه ادا كړي، يوه اړينه خبره ده.




۱- د لاندې كلمو معناوې ووياست:

(يَعْتَصِمْ- حَقَّ تُقَاتِهِ- بِحَبْلِ اللَّهِ- شَفَا- حُفْرَةٍ)

۲- ددې مبارك آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوكُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ كَافِرِينَ﴾ د نزول لامل په لنډه توگه ووياست؟

۳- د اوس او خزرج قبيلو چېرته ژوند درلود؟ له اسلام نه مخكې او وروسته له اسلامه، د دوی د اړيكو په هكله لنډ معلومات راكړئ.

۴- په مبارك آيت كې له رسی څخه مراد څه دی او څرنگه په هغې منگولې ټينگول د خلاصون او بريا سبب كيږي؟

۵- د اهل كتابو د مشرانو پيروي څه حكم لري او د مسلمان برخليك كوم ځاى ته رسوي؟

۶- مبارك آيت ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ...﴾ په څه دلالت كوي؟




(په اوسني وخت كې د اسلامي امت يووالي ته اړتيا) تر سرليك لاندې دوه مخه مقاله وليكئ.

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله و أصحابه أجمعين، و آخر دعوانا أن الحمد لله رب العالمين**